له ثانوي دورې (لسم، يوولسم او دولسم ټولګي) څخه فارغ زده‌کوونکي ښايي د پښتو ژبې د جوړښت او مخينې په اړه پوره معلومات ولري. په هر درسي ساعت کې د لوست تر څنګ بايد د وينا او خبرو وړتيا په ځان کې ورروزي. سمه او رغنده ليک او وينا وکړي. داسې وروزل شي، چې له ستونزو پرته په راديو او تلويزيون کې ويانديز وکړای شي، شعر ولولي او ادبي ټوټه وړاندې کړي. ليکنه يې تر دې کچې پياوړې شوې وي، چې د يو ښه ليکوال، خپلو خپلوانو ته ليک، د وثيقې، حجت ليک، تړونونو، د دوو تنو يا دوو يا زياتو ډلو تر منځ د هر راز جوړ جاړي د ليک د ليکلو، ... وړتيا ولري. د اړتيا په صورت کې بل چاته اړ نشي. ددې موخې ترلاسه کول د ښوونکي دنده ده او په هر درسي ساعت کې د هغه د کار او زيار په څرنګوالي اړه لري. ښايي درانه ښوونکي له زړه سوي او مسؤوليت څخه ډک چلند وکړي، له زده‌کوونکو سره ددې موخې په تر لاسه کولو کې مرسته وکړي او له دې لارې د افغانستان په راتلونکې کې د خپل کار او زيار او نه ستړې کېدونکو هلو ځلو روښانه انځور ننداره کړي.

يادداشت:

له مورنۍ ژبې پرته د پښتو لوست کتابونه دري ژبو سيمو ته هم ليکل شوي دي. د افغانستان د اساسي قانون د ۱۶ مادې له مخې پښتو او دري د افغانستان دوه رسمي ژبې دي. د افغانستان هر اوسيدونکی ښايي د خپلې مورنۍ ژبې ترڅنګ دا بله رسمي ژبه هم زده کړي. يو زده‌کوونکی بايد له ښوونځي څخه تر فراغت وروسته پردواړو ژبو ويوهيږي، افهام او تفهيم پرې وکړای شي او د امکان تر بريده پرې خپلې اړتياوې پوره کړي. ددې موخو د تر لاسه کولو لپاره د دويمې ژبې په توګه د پښتو د لوست د کتابونو د تاليف په اړه له پوره غور او سوچ څخه کاراخيستل شوی. هڅه شوې هر لوست د زده‌کوونکو د عيني اړتياوو پر بنسټ چمتو شي، ورځنۍ اړتياوې، د جملو جوړښت او ساده ګي، د نوو کلمو کارول، د جملو منطقي تسلسل او داسې نور په پام کې ونيول شي. که د پښتو دا کتابونه د ښاغلو ښوونکو له خوا په سمه او رغنده توګه تدريس شي، باور دی، چې له ښوونځي څخه تر فراغت وروسته به زده‌کوونکي وکړای شي خپلې ورځنۍ اړتياوې له ستونزو پرته هوارې کړي.

ښايي يادونه وشي، چې په مورنۍ ژبې کې يو زده‌کوونکی خبرې کولای شي او په اورېدلو يې مفهوم تر لاسه کولای شي، خو يوازې لوستل او ليکل نشي کولای. په داسې حال کې چې له مورنۍ ژبې پرته خبرې کول، اورېدل، لوستل او ليکل، څلور واړه، د زده کړې له لارې ترسره کيږي. په دې توګه د دويمې ژبې په زده کړه کې تر هرڅه دمخه پر خبرو کولو او پر خبرو پوهېدلو (اورېدلو) ټينګار کيږي. لوستل او ليکل په دويم پړاو کې راځي.

د دويمې ژبې په توګه د پښتو لوست په کتابونو کې د لوست د متن په پرتله په فعاليتونو او تمرينونو زيات زور اچول شوی دی. درانه ښوونکي دې، دې ټکي ته پوره پام وکړي، چې د متن د منځپانګې (محتوی) له مخې زده‌کوونکي ډېر فعال وساتي، د ټولګي مخې ته يې راوغواړي او خبرې پرې وکړي، که څه هم په لومړي سرکې دا خبرې پوره معنا ور نه کړي. په ورو ورو زده‌کوونکي له خبرو سره مينه پيدا کوي، خپلو نيمګړتياوو ته پام کوي، ډاډمن کيږي او له ډاره پرته د نورو په وړاندې خبرې کوي او د نورو پر خبرو ځان پوهوي. ښوونکي ته سپارښتنه کيږي، تر ډېره بريده په ټولګي کې له زده‌کوونکو سره په پښتو خبرې وکړي او هغوی هم وهڅوي، چې د پښتو په درسي په ساعت کې په پښتو وغږيږي. ښاغلي ښوونکي دې د يو لوست موضوع د اونۍ په اوږدو کې بيا بيا تکرار کړي او ډاډ دې ترلاسه کړي، چې د زده‌کوونکو په خبرو کولو او سمو اورېدلو کې ښه والی راغلی دی. درانه ښوونکي دې د خپلو تدريسي تجربو له مخې له بېلا بېلو ميتودونو او لاروچارو څخه ګټه واخلي او هڅه دې وکړي لوست د زده‌کوونکو له مينې سره برابر چمتو کړي. د ټولګي دننه د غونډو جوړول، تمثيل، د مقالو ليکل، د جرېدو جوړول او د ورځنيو اړتياوو په اړه خبرې کول داسې فعاليتونه دي، چې زده‌کوونکي د ژبې زده کړې ته هڅوي او مرسته ورسره کوي.

د لوست په دې کتابونوکې د ورځنيو موضوعاتو په اړه يو لږ مرکې راغلي. ښوونکی دې دا مرکــې پــه زده‌کوونکــو ســرته ورسوي. توپير نه کوي، که مرکې ټکي په ټکي د کتاب له متن سره سمون ونه لري. درانه ښوونکي دې زيــار وکــاږي، ددې مرکــو په څېر نورې په زړه پورې موضوعگانې پيدا او زده‌کوونکو ته دې لارښوونه وکړي، چې په لنډو مرکو يــې ســرته ورســوي. دلتــه د ښوونکو مهارت، ورتيا، تجربه، مينه، مسؤوليت او نه ستړی کېدونکی کار خورا ډېر اغېزمن واقع کيږي. له دولسم ټــولگي څخــه د دويمې ژبې فارغ زده‌کوونکی بايد تر ډېرې کچې په پښتو خبرې وکړای شي، نورو ته خپل مفهــوم او غوښــتنه لــه ســتونزو پرتــه ورسولای شي، د نورو پر خبرو او ويناوو پوه شي او هغه څه چې غواړي له ستونزې پرته پخپله وليکلای شي.

د داسې يوې ورځې په هيله، چې د افغانستان ټول وگړي له ستونزو پرته د يو واحد ولس په توگه يو د بــل پــه ژبــه وپوهيږي او خپلې اړتياوې پوره کړي.

د ثانوي دورې د پښتو ژبې درسي کتابونه د افغانستان د تعليمي نصاب د عمومي هدفونو پر بنسټ په دې موخه تاليف اوتدوين شوي دي چې زده‌کوونکي په ټولنيزو اړيکو کې د ژبې پر ارزښت، د معياري ژبې پر پېژندنې او د ملــي، دينــي او فرهنگي ارزښتونو په پياوړتيا کې د هغې په رول وپوهيږي. ښه او رغنده تدريس د زده کړې د عمومي پروگرام يوه برخه ده او ټاکلو موخو ته رسيدل اسانوي.

## د مضمون د تدريس لارښود

ددې لارښود په لومړي څپرکي کې د درسي مضمون له عموميا‌تو او لومړنيو خبرو او د تدريس او ارزونــې لــه لارو چارو سره بلد شوئ. په دې څپرکي کې به د تدريس له کلني پلان او د هر لوست د تدريس له لارو چارو سره بلد شئ.

د تدريس کلنی پلان

د تدريس کلنی پلان څرگندوي چې د لوست کتاب پر يوه تعليمي کال څنگه وويشل شي. زموږ په هېواد کې تعليمي کال د سړو او تودو سيمو لپاره يو له بله توپير کوي. په تودو سيمو کې تعليمي کال د منې د فصل په پيل پيليږي. د مرغومې د مياشتې په دوه اوونيو کې څلور نيم مياشتنی ازموينه اخيستل کيږي. وروستی دوه اونی زده‌کوونکي رخصتيږي. د پسرلي د فصل په وروستی مياشت، يعنې غبرگولي کې په دوو لومړنيو اوونيو کې ازموينه اخيســتل کيــږي او لــه هغــې وروســته زده‌کوونکي د کال وروستي رخصتي اخلي.

په سړو سيمو کې تعليمي کال د وري په لومړی پيليږي. څلورنيم مياشتنی ازموينه د چنگاښ په مياشت کې اخيســتل کيږي. زده‌کوونکي له ازموينې څخه وروسته د زمري په دوو لومړنيو اوونيو کې رخصتيږي. د تعليمي کال په پــای کــې د ليندی د مياشتې په لومړيو دوو اوونيو کې کلنی ازموينې پيليږي او له هغې وروسته زده‌کوونکي د ژمي پــه رخصــتی ځــي. تعليمي کال ۲۸ اونی دوام مومي. د کلني پلان د تنظيم لپاره د لوست د کتاب مخونه پر ۲۸ ســرليکونو وېشــل کيــږي. لاسته راغلې شمېره په يوې اونی کې د لوست د کتاب د تدريس برخه څرگندوي. د هر لوست په ورځني پلان کــې د هــر لوست د زده کړې موخې، د تدريس او ارزونې لارې چارې، د تدريس توکي، د تدريس فعاليتونه (د لومړنيو فعاليتونو ســرته رسول، لکه سلام، روغبړ، د حاضری اخيستل، د پخواني لوست پوښتنه، د انگېزې رامنځته کول، د نوي لوســت وړانــدې کول او د زده‌کوونکو د زده کړې ارزول)، د لوست د متن او پای په اړه پوښتنې او د زده‌کوونکــو او ښــوونکو لپــاره د اضافي معلوماتو برخه جوړوي. هغه په ځير وگورئ او په پوره زړه سوي او رغنده ډول يې د شونتيا تــر کچــې پــر خپلــو زده‌کوونکو عملي کړئ. د لسم، يوولسم او دولسم ټولگي د پښتو د لوست کتابونه ۲۸ لوسته لري. هر لوست پــه يــوې اونی کې تدرسيږي. د وروستي ساعت په پای کې ښوونکی ډاډ تر لاسه کوي چې زده‌کوونکي د لوست ټولې موخې تر لاسه کړې دي؛ پوهه يې زياته شوې؛ ژبنی وړتيا يې پياوړې شوې او ذهنيت يې مثبت بدلون موندلی دی. په دې موخو کې د ژبــې زده کړه، خبرې کول او لوستل تر هرڅه دمخه دي.

# لومړی لوست

## د تدريس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع | حمد | |
| د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د حمد په معنا، مطلب اومفهوم به پوه شي.<br>– د حمد په اړه به خپل نظر بيان کړای شي.<br>– د حمد لوستل به زده کړي.<br>– د حمد له ويلو سره به يې مينه پيدا شي.<br>– د ليک او وينا ژبه به يې پياوړې شي.<br>– د لوست د پای فعاليتونه به په يوازې سر ځواب کړای شي | |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، ويل، اوريدل، سوال او ځواب، ډله ييز کار سرته رسول | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | د تعليمي کال د پښتو لوست لومړۍ ورځ ده. له زده‌کوونکو سره خبرې اترې. | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي او ليکنۍ ارزونه، پوښتنې اوځوابونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، روغبړ او له زده‌کوونکو سره پېژندګلوي | ۴دقيقې |
| د انګېزې رامنځ ته کول | ښوونکی د نوي تعليمي کال د رارسېدو له امله زده‌کوونکو ته مبارکي او ښه راغلاست وايي او د لوست له پيل څخه دمخه له هر يو زده‌کوونکي غواړي ووايي چې عمومي رخصتي يې څنګه تېره کړې ده. وروسته د ژبې د زده کړې په اړه له زده‌کوونکو سره خبرې کوي او د هغې اهميت او ارزښت ته يې پام رااړوي. | ٦دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه | ۳۵دقيقې |
| ــ ښوونکی له حمد او ثنا څخه وروسته زده‌کوونکو ته د نوي تعليمي کال د رارسېدو له امله مبارکي او ښه راغلاست وايي او د هغوی د هڅو او د لوست د زده کړې د ګټو په اړه معلومات ورکوي. بيا له هر زده‌کوونکي څخه د تعليمي کال د پای د رخصتيو د تېرولو په اړه پوښتنې کوي.<br>ــ د نوي تعليمي کال په اړه زده‌کوونکو ته سپارښتنې کوي، په جلا جلا توګه يې لوست ويلو ته هڅوي او د زده کړې په اهميت او ارزښت يې پوهوي. | ــ زده‌کوونکي د ښوونکي درناوی کوي. هر يو په خپل وار له ښوونکي او د زده‌کوونکوپه روزنه کې د هغه له نه ستړي کېدونکو هلو ځلو ستاينه کوي. بيا هر يو په خپل وار د تعليمي کال د رخصتيو د تېرولو په اړه لنډې خبرې کوي.<br>ــ زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نيسي او د هغه سپارښتنې مني. | |

| | |
|---|---|
| ــ په نوي تعلیمي کال کې د پښتو ژبې د لا ښې زده کړې په اړه زده‌کوونکو ته خپل پلانونه څرګندوي او د ژبې د زده کړې موخې ورته بیانوي. لا له همدې پیل څخه له زده‌کوونکو غواړي چې په خپلو ځانونو کې د خبرو او بیان ځواک پیاوړی کړي، ښې او ادبي لیکني وکړي او د نثر او شعر د ویلو او لوستلو وړتیا په ځان کې ځواکمنه کړي. | ــ زده‌کوونکي د ښوونکي پلانونه او د ژبې د زده کړې موخې لیکي، ځانونه پرې پوهوي او د تعلیمي کال په اوږدو کې یې عملي کوي. زده‌کوونکي د ژبې پر ارزښت ځانونه پوهوي او ګوري چې ښه وینا او ښه لیکنه څومره مهمه ده. د ښو ادبي لیکنو پر ځانګړتیاوو ځانونه پوهوي او هوډ کوي چې د نثر او شعر د ویلو وړتیا په ځان کې پیاوړې کړي. |
| ــ په ورځنیو چارو کې زیاتره د دوو تنو یا د یوې ټولنې د غړو تر منځ د ویونکي د اصلي پیغام د نه پوهېدو له امله ناندرۍ راولاړیږي. ښوونکی ددې نیمګړتیا د لېرې کولو لپاره د خبرو او ژبې له لارې په سم ډول د پیغام رسولو او د پوهولو او راپوهولو د تخنیک (Communication) پر اهمیت زده‌کوونکي پوهوي او د سوء تفاهم د راولاړیدو پر معنا او مفهوم یې پوهوي. | ــ زده کونکي د ناسم پوهاوي یا سوء تفاهم او په له منځه وړلو کې یې د وینا پراهمیت او ارزښت ځانونه پوهوي او هڅه کوي چې تل څرګندې او روښانه خبرې وکړي او په خپله وینا کې داسې کلمې وکاروي چې اوریدونکي ترې د هغه مطلب په ښه او سمه توګه واخیستلای شي او د ناسم پوهاوي مخه ونیولای شي. |
| ــ ښوونکی د همدې هڅونې له مخې د لوی خدایﷻ په نامه په نوي لوست پیل کوي. حمد په ډېر زړه را کښونکي غږ لولي او له زده‌کوونکوغواړي د حمد د لوستلو په ډول ځانونه وپوهوي. | ــ زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي او د حمد د لوستلو او ویلو لارې چارې زده کوي. |
| ــ ښوونکی د حمد د متن پر ځانګړتیا زده‌کوونکي پوهوي. | ــ زده‌کوونکي د حمد ځانګړتیاوې پېژني. د شعر او ساده نثر پر توپیرځانونه پوهوي. |
| ــ ښوونکی د متن له لوستلو وروسته د متن ستونزمنې برخې تشریح او نوې کلمې یې معنا کوي. | ــ زده‌کوونکي د متن پرستونزمنو برخو ځانونه پوهوي او د نوو کلمو معنا زده کوي. |
| ــ ښوونکی په پښتوادبیاتوکې د حمد بېلګې راوړي او زده‌کوونکي پرې پوهوي. | ــ زده‌کوونکي هڅه کوي په پښتو ادبیاتو کې د مناجاتو بېلګې وګوري اوځینې یې له ځان سره یادداشت کړي. |
| ــ ښوونکی د زده‌کوونکو پوښتنو ته ځوابونه وایي. | ــ زده‌کوونکي په متن کې یا د متن په اړوند خپل معلومات بشپړوي او د ناڅرګندتیا په صورت کې له ښوونکي پوښتنه کوي. |
| ــ ښوونکی په لنډ ډول لوست تکراروي او زده‌کوونکي ارزوي. | ــ زده‌کوونکي د لوست پر لنډیز ځانونه پوهوي او د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| ــ ښوونکی څو زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي، چې د حمد په اړ له یو بل څخه پوښتنه وکړي. | ــ څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او د حمد په اړه له یو بل څخه پوښتنې کوي. |
| ــ ښوونکي زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې ځانونه و | ــ زده‌کوونکي ګوري چې په لوست کې یې کوم نوی شی |

| | |
|---|---|
| ارزوي.<br>ـ ښوونکی دې زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړي چې دخدای جل جلاله د نعمتونو او د هغوی په وړاندې د انسان د شکر کولو په اړه ځوکربښې ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې په ډلګۍ کې ولولي. | زده کړي، د لیک او لوست وړتیا یې ځومره ځواکمنه شوې او په فکر کې یې ځومره بدلون راغلی دی.<br>ـ زده‌کوونکي فعالیتونه سرته رسوي او کورنۍ دنده اخلي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

شلمان: د طورخم په شمال شرقي برخه کې یوه غرنۍ سیمه او دنګ غر یې د شلمان په نوم یادېږي.

صدیق الله رښتین د مولوي تاج محمد زوی په (۱۳۳۵) هجري قمري کال د ننګرهار د مومندو په سره کمره کې زیږیدلی دی.

عبدالرحمان بابا د عبدالستار زوی، د پښتو ژبې صوفي شاعر او په (۱۰۴۲) هجري قمري کال کې د پېښور په سویل کې په بهادر نومي کلي کې زیږیدلی، د اشعارو ښکلی دیوان لري، په (۱۱۲۸) کې وفات شوی او د پېښور په هزارخانۍ کې خاورو ته سپار ل شوی.

**اضا في معلوما ت:**

حمد د لوی خدای جل جلاله ثنا، صفت او ستاینې ته وایي. دا کلمه دده له پاک ذات ځخه بل چاته نه استعمالیږي. الله جل جلاله هغه ذات دی چې د نړۍ د ټولوکایناتو صانع، خالق او مربي دی؛ په ذات، صفاتو او افعالو کې ورسره هیڅوک مل او ملګری نشته؛ له ټولو نقایصو او عیبونو ځخه پاک او سپېځلی دی؛ پر ټولو پټو او ښکاره رازونو او شیانو باندې پوه او اګاه دی؛ خورا زیات مهربانه او پوره رحم کوونکی دی. الله جل جلاله هغه سپېځلی او پاک ذات دی چې په خپل قدرت سره یې ځمکې، اسمانونه، غرونه، سیندونه، سمندرونه، لمر، سپوږمۍ، ستوري، وریځې،ځاروي، الوتونکي، انسانان، پیریان، نباتات او نور هغه شیان، چې انسان د هغوی له لیدلو ځخه عاجز دي، پیدا کړي دي. دا ټول د الله جل جلاله د قدرت نښې او نښانې دي. الله تعالی هغه لوی ذات دی چې په خپل قدرت سره یې له خاورې ځخه د ټولو انسانانو پلار، ادم علیه السلام پیدا او د خلافت مقام یې ورکړ او دده له پښته یې ټول انسانان پیداکړل. انسان یې د اشرف المخلوقات په لقب وویاړه. د انسانانو د لارښوونې لپاره یې لږ و ډېر یو لک اوڅلرویشت زره پیغمران راولیږل. تر ټولو پیغمبرانو وروستی پیغمبر یې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دی.

د حمد د نظم ویونکی، ملا لټار دی. ملا لټار شلماني په هند کې د پښتنو شاعرانو له ډلې ځخه ګڼل کیږي. د اروانباد پوهاند صدیق الله رښتین په وینا ملا لټار یو متوسط شاعر و. د شعرونو یو دیوان ورځخه پاتې دی.

د ملا لټار شلماني د یوان ( ۱۱۹۰) هجري قمري د ذالحجې د میاشتې په شلمه نېټه بشپړ شوی دی. دا هغه وخت و چې ملالټار د خپل عمر اته ویشتم پسرلی خلاص کړی او په نه ویشتم یې نوی پیل کړی و. نو په دې اساس موږ دده د زوکړې کال (۱۱٦۱) هجري قمري ټاکلی شو. د ملا لټار شلماني ژوند د دولسمې پیړۍ وروستۍ نیمایي او د دیارلسمې پیړۍ د لومړۍ نیمایي تر لومړیو ځو لسیزو پورې اټکل کیږي. د مړینې یقیني او ټاکلې نېټه یې نه ده ځرګنده. دده د دیوان په چاپي نسخه کې (۳۰۹۰) بیتونه راغلي دي. ملا لټار د صوفي شاعر عبدالرحمان بابا د سبک پیروګڼل کیږي. د ملا لټاړ دیوان چاپ شوی دی.

**اخځلیکونه:**

ـ په هند کې د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایجاد او ودې پړاوونه، لیکوال سرمحقق زلمی هېوادمل

## دویم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | نعت | | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پا ی کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– د اسلام د ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سیرت په اړه به معلومات پیدا کړي.<br>– د اسلام د ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم سیرت او اخلاق به د خپل ژوند د لارې مشال وګرځوي.<br>– د اسلام د ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سیرت او اخلاقو په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې سر، سرته ورسولای شي. | | |
| د تدریس لارې | پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز کاراو یوکسیزکار | | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتا ب، کتابچه، تخته، تباشیر، قلم، تخته پاک، د امکا ن په صورت کې د نورو نعتونو راوړل. | | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي پوښتنې، څارنه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او روغبړ، د کورنۍ دندې کتل او اصلاح او د تیر لوست ارزونه | | ۴دقیقې |
| د انګېزې رامنځ ته کول | – د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ستاینه په څه نامه یادیږي؟<br>– تاسو په تېرو ټولګیو کې د نعت کلمه اوریدلې، ووایاست چې هغه پر کومه موضوع بحث کوي؟ | | ٦دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵دقیقې |
| – ښوونکي نعت لولي.<br>– ښوونکی د نعت پر ځینو برخو له زده‌کوونکو سره خبرې کوي.<br>– ښوونکی زده‌کوونکو ته وار ورکوي چې د نعت یو، یو بیت ولولي.<br>– ښوونکی له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د غوره اخلاقو په اړه خبرې | | – زده‌کوونکې ښوونکي ته غوږ نیسي او د نعت ستونزمنې برخې په نښه کوي.<br>– زده‌کوونکي د ښوونکي د څرګندونو یادداشت اخلي.<br>– زده‌کوونکې په وار سره د نعت یو، یو بیت لولي.<br>– څو تنه زده‌کوونکي په وار سره د ټولګي مخې ته راځي او د ګران پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سیرت اواخلاقو په اړه خبرې کوي او څرګندوي چې ولې د پیغمبر سیرت او اخلاق د هر مسلمان د لارې مشال | |

| | |
|---|---|
| وکړي. | دی. |
| – ښوونکی زده‌کوونکوته لارښوونه کوي چې د نعت نوې کلمې پیدا او پر معنا یې ځانونه وپوهوي. | – زده‌کوونکي نعت لولي اوپر نوو کلمو ځانونه پوهوي. |
| – ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ډلو ویشي او دنده ورکوي چې په خپلو منځونوکې د محمد صلی الله علیه وسلم پر غوره اخلاقو باندې خبرې وکړي او وروسته دې یو تن د ډلې د خبرو لنډیز نورو ټولګیوالو ته واوروي. | – زده‌کوونکي په ډلو کې په خپل وار د ګران پیغمبر صلی الله علیه وسلم پر اخلاقو خبرې کوي. یو تن  د ډلې د غړو خبرې لیکي او په پای کې د لنډیز په توګه نورو ته اوروي. په ډله کې هر زده‌کوونکی خپل نظر څرګندوي او په وار سره د ډلې مشري او د ډلې په استازیتوب وینا کوي. |
| – ښوونکي د نعت لنډیز تکراروي او د لوست پر اصلي پیغام زده‌کوونکي پوهوي. | – زده‌کوونکي ګوري چې له لوست څخه کومه نوې پوهه تر لاسه کړه، د وینا او لیک وړتیا یې څومره توپیر وموند او په فکر کې د خپلو اخلاقو څومره بدلون راغی. |
| – ښوونکی له یو څو زده‌کوونکوڅخه د لوست په اړه پوښتنې کوي او خپل لوست ارزوي. | – زده‌کوونکي په ډېره مینه د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. که اړتیا یې درلوده د لازیاتو معلوماتو لپاره دې له ښوونکي څخه پوښتنې وکړي. |
| – که اړتیا وه، ښوونکي د لوست د پای په فعالیتونو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي. | – زده‌کوونکي د لوست د پای فعالیتونه په یوازې سر ځوابوي. |
| – په پای کې په خپله خوښه زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. له کورنۍ دندې څخه باید موخه د زده‌کوونکو د لیک او وړتیا پیاوړي کول وي. | – زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې یې ځوابوي.  هڅه کوي لیکنه یې ښکلې او ادبي رنګ ولري. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

بي بي آمنه: د اسلا م د ستر لارښود حضرت محمدﷺ مور وه چې د "زهرې" له قبیلې څخه وه. د حضرت محمدﷺ رضاعي مور بي بي حلیمه نومیده.

معما: هغې پوښتنې ته ویل کیږي چې ځو اب یې ژر تر ژره د انسان فکر ته نه ورځي.

سراج الموتی: سراج الموتی د شمس الدین کاکړ د یوه کتاب نوم دی.

**اضا في معلوما ت:**

نعت هغه موزون کلام دی چې د اسلام د ستر پیغمبرحضرت محمدﷺ ستاینه پکې شوې وي. په نعت کې معمولاً شاعران د حضرت محمدﷺ د سیرت ستاینه کوي. ترټولو وروستی پیغمبر حضرت محمدﷺ دی. حضرت محمدﷺ د عبدالله زوی، د عبدالمطلب لمسی او د هاشم کړوسی دی. د اسلام ستر لارښود حضرت محمدﷺ د ربیع الاول د میاشتې په (۱۲)  نېټه د دوشنبې په ورځ چې د (۵۷۱) میلادي کال د اپریل د میاشتې د شلمې او یا یویشتمې نېټې سره سمون خوري، د سپېده دا غ مهال د بي بي امنې له بطنه نړۍ ته سترګې وغړولې. بي بي امنه فرمايي: «د حضرت محمدﷺ د زیږیدو پرمهال زما له بدن څخه یوه داسې رڼا را ووته چې د شام ماڼۍ یې روښانه کړه.» داسې نورې زیاتې واقعې هم رامنځته شوي چې د بعثت زیری یې ورکاوه، لکه دکسرا د ماڼۍ د څوارلسو برجونو پریوتل، د ساوا د سمندرګي وچیدل

او دغه راز د فارس د زرکلني آتشکدې مړه کېدل. حضرت محمدﷺ په ۱۳کلنۍ کې مدينې منورې ته هجرت وکړ. په شپږ کلنۍ کې يې مور بي بي امنه وفات شوه. په (۲۵) کلنۍ کې يې له ام المومنين حضرت بي بي خديجې رضي الله تعالی عنها سره واده وکړ. په څلويښت کلنۍ کې پر پيغمبرۍ مبعوث شو. د اسلام ستر لارښود حضرت محمدﷺ د (٦۳) کالو په عمر د ربيع الاول په دولسمه د دوشنبې په ورځ له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې او وروسته په مدينه منوره کې دحضرت عايشې رضی الله تعالی عنها په حجره کې خاورو ته وسپارل شو.

د اسلا م پيغمبر د هومره ښکلي بدن او سپيڅلو اخلاقو څښتن و چې له برکته يې د هر انسان په زړه کې ځای لري چې د قلم په څوکه يې ليکل اسانه کار نه دی. همدا غوره توب و چې زړونه ورته رامات شوي او ميړني دې ته تياروو چې د خپلو سرونو په بدل يې وژغوري او وقار يې وساتي. حضرت محمدﷺ په دنيا کې د اخلاقو يوه مجموعه وه، ښکلی بدن او منځنۍ ونه يې درلوده. د اوږدو بنو په مينځ کې ګردې تورې سترګې د نريو او اوږدو وريځو لاندې وې، ويښتان يې تک تور و. د چوپتيا پرمهال به ډېر دروند ښکاريده او چې خبرې به يې کولې، نو ټول به يې د ځان په لور راښکل، له ليرې څخه د ټولو په مينځ کې تر هر چا غوره او ويارمن او له نژدې څخه ترهرچا ښکلی ښکاريده، خوږې او غوڅې خبرې يې کولې، د بندونو هډوکې يې غټ او په سينه يې د ويښتانو اوږد کتار و، کله به چې روان و، نو داسې اوچت اوچت قدمونه به يې اخيستل ته به وايې چې له کوم غره څخه راښکته کيږي، د دواړو اوږو په مينځ کې يې د نبوت مهر لګېدلی و، له هر چا يې لاس ډېر پراخ و له هر چا ډېر زړور و، خبره يې تر هر چا غوره او تر هر چا يې پر وعدې او تړون زياته وفا کوله، له هرچا نرم او تر هر چا شريف او تر هر چا ګذاره کوونکی و، که هر څوک به نابېره ورسره مخامخ شو، نو لړزه پرې راتله اوکه د مينې او محبت ناسته او ولاړه يې ورسره کوله، مينه يې پرې راتله. که څوک غواړي چې د هغه بشپړ صفتونه او خويونه ووايي، نو يوازې په دې خبره کې رانغښتی شي چې ووايي. درود دې وي، د لوی خدایﷻ پر هغه پيغمبرﷺ چې مثال يې نه وړاندې و او نه به وروسته پيدا شي.

د نظم ويونکی، شمس الدين کاکړ د پښتو ژبې يو مشهور شاعر او د يو دردمن زړه خاوند انسان و. د کندهار په کلچاباد کې زيږيدلی او په نوموړي ځای کې لوی شوی دی. خو د زوکړې اومړينې په اړه يې دقيق معلومات په لاس کې نه لرو. يو شمېر څېړونکي يې د زوکړې نېټه له (۱۱۸۰) هجري وروسته ګڼي. نوموړي ډېره موده له وطنه بهر په هند او کشمير کې د پرديسۍ شپې او ورځې سبا کړي دي او هميشه يې خپل وطن ياد کړی او د وطن په ياد يې خواږه شعرونه ويلي دي. په شعر او نثر کې د لوی لاس خاوند و. د شعرونو يو ښکلی ديوان لري. له د يوان پرته يې يوبل پنډ کتاب د (سراج الموتی) په نامه په نثر هم کښلی دی چې د پښتو په نيم منظوم نثر باندې يو ديني اومذهبي اثرګڼل کيږي. ديني او فقهي مسايل په کې بيان شوي دي. نوموړی کتاب په ديارلسمه پېړۍ پورې اړه لري، خو د ليک د ډول له مخې د دويمې دورې په کتارکې دريږي. ددې خبرې لامل دادی چې په ديارلسمه پېړۍ کې د ديني موضوعاتو د ليکلو لپاره دغه سبک ښه او غوره ګڼل شوی و، ځکه چې د وعظ اوخطابې په وخت کې په وزن او اهنګ ويل کېدای شي او په اوريدونکو ښه اثر اچولای شي.

**اخځليکونه:**

سيرته النبي پښتو ترجمه، الرحيق المختوم، ليکوال پوهاند صفي الرحمن مبارک الپوري. ژباړن پوهندوی مولوي جانباز سرفراز

سيرت النبي لومړی ټوک، شبلي نعماني

د پښتو نثرهنداره، ليکوال پوهاند صديق الله (رښتين)

## دریم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | پندونه | | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– د پندونو په مطلب اومفهوم به پوه شي.<br>– د پندونو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– د پندونو د ارزښت په اړه به معلومات ورکړای شي.<br>– د خبرو کولو ځواک به یې پیاوړی شي.<br>– لیکل اولوستل به وکړای شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د وروستۍ برخې فعالیتونه به په خپلواک ډول ترسره کړای شي. | | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې |
| | پوښتنه اوځواب، ډله ییز کار، یوکسیز کار او دوه کسیز کار | | د تدریس لارې |
| | درسي کتا ب،کتابچه، تخته او تباشیر | | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | د کورني کار لیدل او د تیر لوست ارزونه او ځارنه | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | سلام، روغبړ، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل او اصلاح او د تیر لوست ارزونه | | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦ دقیقې | د لویانو او پوهانو هغه لنډې او مؤجزې لیکلې او نالیکلې ویناوې چې د ژوند په بیلابیلو اړخونوکې ګټورې دي، په څه نامه یادیږي؟ | | د انګېزې رامنځته کول |
| ۳۵ دقیقې | د زده‌کوونکو فعالیتونه | | د ښوونکي فعالیتونه |
| | – زده‌کوونکي دې د ښوونکو خبرو ته غوږ کیږدي او نوی لوست دې ولولي.<br>– څو زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه نوی لوست په لوړ او مناسب اواز لولي.<br>– زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه په ډلو کې ځانونه تنظیموي، پر پندونو خبرې کوي او یو تن استازی یې خبرې توحیدوي او نورو ټولګیوالو ته یې اوروي.<br>– څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د | | – ښوونکی دې په پیل کې د پندونو په هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکړي او بیا دې وهڅوي چې پخپلو منځونو کې لوست ولولي.<br>– ښوونکی دې په څو زده‌کوونکو نوی لوست ولولي، نور زده‌کوونکي دې ورته غوږ ونیسي. د اړتیا په وخت کې دې ښوونکی ورسره همکاري وکړي.<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکي په څو ډلو وویشي چې پر پندونو بحث وکړي.<br>– ښوونکی دې څو زده‌کوونکو ته بلنه ورکوي چې د |

| | |
|---|---|
| نورو په وړاندې په درسي کتاب کې د راغلو پندونو په اړه لنډې خبرې وکړي. | ټولګي په وړاندې یو، یو پند وایي او په اړه یې خبرې کوي. |
| – ښوونکی په وار دوه، دوه زده‌کوونکي په خپلو منځونو کې د یوې موضوع په اړه دخبرو لپاره راغواړي. | – دوه، دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي په وړاندې د خپلې خوښې د یوې موضوع په اړه خبرې کوي. |
| – ښوونکی دوه زده‌کوونکي په وار راغواړي، چې هر یو د ورځې د یوې موضوع په اړه دوه، دوه دقیقې خبرې وکړي. | – څو زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخې ته راځي او د یوې موضوع په اړه په خپلو کې خبرې کوي. |
| – ښوونکي دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او لارښوونه او ورته کوی چې پخپلو خبرو کې شمېر وکاروي. | – دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او داسې خبرې کوي چې شمېر پکې کارېدلی وي، لکه: ته څو کلن یې؟ جامې دې په څو افغانۍ جوړې کړې دي. زه له تا څخه دوه کاله مشر یم... |
| –ښوونکی د درسي ساعت په پای کې د لوست لنډیز زده‌کوونکو ته وړاندې کوي او ورسته دې د خپل ډاډ په خاطر پخپله خوښه څو پوښتنې وکړي. | – زد ه کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکو ته دنده ورکړي چې په کورونو کې د لویانو په مرسته، څو پندونه په کتابچو کې ولیکي او بله ورځ دې ټولګیوالو ته ووایي. | – زده‌کوونکي په کورنۍ دندې ځانونه پوهوي او په بل درسي ساعت کې یې ټولګي ته راوړي. |

**د متن دستونزمنو برخو روښانول:**

**خوږې نغمې: د اروښاد ملنګ جان د شعرونو ټولګه ده. د خوږو نغمو کتاب پنځه ځلې چاپ شوی دی.**

**ګلدسته: د (ګلستان) پښتو ژباړه ده چې عبدالقادرخان خټک ژباړلې.**

**حدیقه خټک: حدیقه خټک عبدالقادر خان خټک په (۱۱۱۵) هجري قمري کا ل بشپړه کړې ده.**

**نصیحت نامه: دا هم د عبدالقادرخان خټک اثر دی. بشپړ متن یې تراوسه نه دی ترلاسه شوی. دا رساله ټوله د تجنیس په ادبي صنعت، د مثنوي په شعري ډول کې ویل شوې ده.**

**څلویښت حدیثونه: دا اثر تراوسه نه دی چاپ شوی. په دغه رساله کې د حضرت محمدﷺ څلویښت حدیثونه د مثنوي په بڼه کې په نظم شوي دي.**

**قصیده برده: دا عربي قصیده د امام ابوعبدالله شرف الدین البصیري ( ۶۰۸–۶۹۵ه.ق) ده. په ۶۵۹ یا۶۶۰ هجري قمري کال یې نظم کړې. عبدالقادرخان خټک د قصیدې په چوکاټ کې په نظم ۱۶۵ بیتونه ژباړلي دي.**

**یوسف او زلیخا: دا د حضرت یوسف علیه السلام او زلیخا کیسه ده چې په پښتو ژبه کې ددې کیسې ژباړه عبدالقادرخان په ۱۱۱۲هجري قمري کا ل د مولانا نورالدین عبدالرحمان جامي (۸۱۷–۸۹۸ هجري قمري) له پارسي یوسف او زلیخا څخه د مثنوي په بڼه لیکلې ده.**

**– ملنګ جان په (۱۲۹۳) لمریز کال د ننګرهار د ولایت د بهسودو په چمیار نومي کلي کې د ملک عبدالشکور په**

| |
|---|
| کورکې زېږېدلی. ملنگ جان د اوسنیو شاعرانو په ډله کې یو وتلی شاعر و. ملنگ جان د شعر په ټولو ښو کې ښه برلاسی و. له بده مرغه دغه خوږ ژبی او ولسي شاعر په (۱۳۳٦) لمریزکال د کابل ــ جلال آباد د لويي لارې په اوږدو کې د لته بند په کړلیچونوکې د یوې ترافیکي پېښې له امله له دې فاني نړۍ څخه سترگې پټې کړې. د اشعارو یو ښکلی کتاب ورڅخه پاتې دی چې خوږې نغمې نومیږي.<br>– عبدالقادرخان ختک د خوشحال خان خټک زوی و. په (۱۰٦۳) هجري قمري کال کې زیږیدلی دی. د وخت دودیز علوم یې له خپل پلا رڅخه ولوستل. د پلار په قدم یې پل ایښی اوزیات کتابونه یې ولیکل چې د ځونومونه یې پدې ډول دي.<br>د اشعارو دیوان یا حدیقه خټک. نصیحت نامه، څلویښت حدیثونه، قصیده برده، یوسف او زلیخا،گلدسته |
| **اضا في معلوما ت:**<br>څو پندونه یا لنډې ویناوې:<br>– څوک چې امانت نه ساتي، بشپړ مؤمن نه دی.<br>– څوک چې پخپله وعده وفا نه کوي، د کامل دین خاوند نه دی.<br>– په مصلحت او همت سره گران کارونه اسانیږي.<br>– څوک چې صبرنه لري هغه حکمت نه لري.<br>– چې شکرنه لري، هغه نعمت نه لري.<br>– په ناحقه د بدو گمان ښه نه دی، څوک چې مسلمان وي، بې ځایه شک نه کوي.<br>– دعلم بحث له هرچا سره کوه، ښه دی.<br>– حسد، کینه چې څوک کوي، ځان اوبه کوي، ولې چې په حسد اوکینه څوک د چا هیڅ هم نه شي کولی.<br>– کامیاب هغه څوک دی چې په علم یې عمل وکړو.<br>– هغه کارمه کوه چې د چا زړه پرې دردیږي.<br>دا د عبدالقادرخان خټک یو قطعه ده چې د پند په اړه یې ویلې ده.<br>چې یې ونشي ادب په هلکوالي　　　　په لویوالي پرې اثر نه کاندي پند<br>تنگي نشته په مراد د استاد درومي　　　　وچ لرگي ته یا اور دی یا بند بند |

## څلورم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونوسرلیکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | ژمنه | | |
| د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– د ژمنې پر ارزښت او اهمیت به پوه شي.<br>– ښه اخلاق به وپېژني او له بدو اخلاقو څخه به ځانونه وژغوري.<br>– د انسان د شخصیت په جوړېدو کې به د حیثیت، وقار، باور او نورو ښو اخلاقو ونډه او اغېز درک کړي.<br>– له ښو اخلاقو سره به یې مینه لا نوره هم زیاته شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول سرته ورسولای شي. | | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، اوریدل، سوال او ځواب، ډله ییز کار او یو کسیزکار | | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوي توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک او تباشیر | | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي، عملي، څارنه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | روغبړ، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې کتل | | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی د ښو اخلاقو په اړه خبرې کوي او د یوې بېلګې په وړاندې کولو نوی لوست پیلوي. | | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی په بېلا بېلو ټولنو کې د ښو او منلو خویونو په اړه څرګندونې کوي او د هرې ټولنې له دود سره سم د منلو او نامنلو اخلاقو په اړه غږیږي. وایي، کېدای شي ښه اخلاق له یوې ټولنې څخه بلې ته توپیر ولري، خو داسې اخلاق شته چې په ټولو ټولنو کې یو راز ارزښت او اهمیت لري، لکه رښتیا، صداقت، امانت، پر وعدې وفا او نور. په دې توګه د ښو اخلاقو د تعمیم او له بدو اخلاقو څخه ځان ژغورل په زده‌کوونکو کې پیاوړي کوي. بیا دې په لوست کې راغلې کیسه زده‌کوونکو ته له یاده ووایي. وروسته دې زده‌کوونکو ته ووایي چې کیسه په کتاب کې له ځان سره ولولي. | | – زده‌کوونکي له ښوونکي سره په خبرو کې ونډه اخلي، ښه او منلي خویونه له نامنلو او ناوړو خویونو څخه بېلوي. پر دې ځانونه پوهوي داسې خویونه او اخلاق شته چې له یوې ټولنې بلې ته توپیر کوي، د بېلګې په توګه په لویدیځه نړۍ کې زیاتره نارینه له ښځو سره د مخ په ښکلولو روغبړ کوي، په داسې حال کې چې زموږ په ټولنه کې دا نامنلي اخلاق دي. د رښتینولۍ، د امانت د ساتلو د درواغو د نه ویلو او نور په څېر اخلاق شته چې په ټولو انساني ټولنو کې یو شان دي. وروسته کیسه د کتاب له مخې له ځانه سره لولي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی دې د پورته فعالیت په دوام پنځو زده‌کوونکو ته ووايي چې لوست د کتاب له مخې په وار ولولي. | – پنځه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د کتاب له مخې لوست لولي. هڅه کوي چې په لوستلو کې د ویاندۍ اصل ته پام وکړي. |
| – ښوونکی دې دوه، درې درې زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د ښو اخلاقو د ګټې او د بدو اخلاقو د زیانونو په اړه خبرې وکړي. له زده‌کوونکو دې وغواړي چې که په اړونده موضوع کې یې کومه کیسه یاده وي، ودې وایي. | – دوه، درې زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او د ښو اخلاقو د ګټې او د بدو په زیانونو خبرې کوي. که کومه کیسه یې یاده وي، وایي یې. |
| – ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د یو انانسر یا د رادیو_تلویزیون د وياند په څېر خبرې وکړي. په سریزه کې دې د ژمنې د ارزښت په اړه یوه لنډه تبصره وکړي او بیا دې یو، یو زده‌کوونکی د وینا لپاره رابولي. | – دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي. د ښو اخلاقو په اړه لنډه تبصره کوي او بیا یو زده‌کوونکی د وینا د اورولو لپاره رابولي. |
| – ښوونکی دې د کیسې پیغام زده‌کوونکو ته څرګند کړي او یا دې له زده‌کوونکو وغواړي چې څرګند یې کړي. | – زده‌کوونکي د کیسې پر پیغام ځانونه پوهوي او ډېر ترلاسه کوي، چې د رښتیا ویلو او نیکو اخلاقو په سرته رسولو یې ټولنیز شخصیت لا پسې وده کوي او پیاوړی کیږي. |
| – ښوونکی دې درې درې زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوبولي، د وفا، میړانې او احسان په اړه دې خبرې وکړي، چې په کیسه کې له سزا څخه د ځوان د بچېدو لامل شول. | – درې زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او د هغو درې خویونو په اړه خبرې کوي چې په کیسه کې د ځوان د ژغورلو لامل شول.<br>– |
| – ښوونکی دې څو زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړي چې نوموړې کیسه په خپله ژبه نورو زده‌کوونکو ته واوروي. | – څو زده‌کوونکي د لوست کیسه په خپله ژبه نورو زده‌کوونکو ته اوروي.<br>– |
| – ښوونکی دې د لومړیو دوو درسي ساعتونو په پای کې زده‌کوونکو ته دنده ورکړي چې په پیغلو او ځوانانو کې د ښو اخلاقو د روزنې پر اړتیا او ارزښت لیکنه وکړي. په وروستي ساعت کې دې د لوست د پای کورنۍ دنده ورکړي. | – زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي او په ښکلو او منلو جملو او ښه متن یې چمتو کوي، په ټولګي کې یې لولي او د ټولګي په خپرونې کې یې د خپرولو لپاره کتنپلاوي ته ورکوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

ابوذر غفاري‌رضي‌الله‌عنه چې اصلي نوم یې جند بن جناده و، بنو غفار قبیلې ته منسوب، له مدینې منورې څخه اتیا میله لېرې د بدر په شاوخوا کې هغې لارې ته نژدې اوسېده، چې له مکې مکرمې نه د شام او فلسطین په لوري تللې وه.

**دیت:** له هغه مال څخه عبارت دی چې د انسان د نفس د وژنې په بدل کې لازمیږي. په اسلام کې د دیت اندازه سل اوښان ټاکل شوې دي.

**اضافي معلومات:**

د حضرت عمرﷺ د پلار نوم خطاب و. په (۵۸۴ م.) کال کې د فجار له جنگ څخه دمخه په مکه مکرمه کې زیږېدلی دی؛ یعنې له حضرت محمدﷺ څخه دیارلس کاله کشردی. نوموړي دکوچنیوالي عمر هم په مکه مکرمه کې تېرکړی او په مکه مکرمه کې لوی شوی دی. په کوچنیوالي کې یې خپلې مېږې او پسونه څرول. د ځوانۍ پر مهال د لوړې او دنگې ونې خاوند او غښتلی قوي ځوان و. له هرچا سره په مقابله کې بریالی و. د سر نیم ویښتان یې رژېدلي و، غومبوري یې نرم او غنمرنگ و. په لاره به پیاده تلو. داسې به معلومېده چې په څه شي سپور دی. د حضرت محمدﷺ د بعثت په پنځم (۵) کال د شپږویشت (۲۶) کلنۍ په عمر د اسلام په مبین دین مشرف شو. د ده په مسلمانېدو سره د اسلام دین نور په ښکاره د دعوت پیل وکړ. کله چې حضرت عمرﷺ خلیفه شو، دده زړه د ایمان په رڼا ډک و. د ده اعمالو هم له دغه ځایه سرچینه نېولې وه. حضرت عمرﷺ له اسلام څخه مخکې په زړورتیا، مېړانه او امانتدارۍ مشهور و. د اسلام له راوړلو څخه وروسته یې زړه په ایماني رڼا ډک او نرم و. د عقل قوه یې ډېره تېزه او د ټینگې ارادې څښتن و. په رحم او عدالت کې یې په خپل وخت او راوروسته زمانه کې مثال نه درلوده. د زیاتو معلوماتو لپاره د حضرت عمرفاروقﷺ د عدالت ځوبلگې په دې ډول دي.

وایي، یوه ورځ حضرت عمربن خطابﷺ له څو نورو صحابه کرامو سره په سفر روان و، د لارې په اوږدو کې یې یوه لویه رمه ولیدله چې په څر لگیا وه. رمې ته ورنژدې شول. شپونکی یې راوغوښت. له سلام او احوال پوښتنې وروسته یې وویل یو پسه پرموږ خرڅ کړه. شپونکی په ځواب کې وویل، زه خو غلام یم. دا پسونه مې د بادار دي او زه یې د خرڅولو واک نه لرم. حضرت عمرﷺ د ده د آزموینې لپاره ورته وویل: "کله چې کورته لاړې، بادارته به دې ووایې چې پسه خو لیوانو وخوړ. غلام ورته په ځواب کې وویل، زه خو به خپل بادار ته دا پلمه وکړم، خو د اخرت په ورځ به خپل لوی بادار، اللهﷻ ته څه ځواب ووایم. ددې خبرې په اوریدو سره حضرت عمر بن خطابﷺ حیران شو او تصمیم یې ونیو چې دا سړی باید نور له غلامۍ څخه خلاص او ازاد ژوند وکړي. له غلام څخه یې وپوښتل: "ته دې بادار په څو روپۍ اخیستی یې؟" غلام ورته د هغه وخت څو روپۍ وښودلې. ده سم دلاسه هغه پیسې ورکړې او ورته ویې ویل، داپیسې دې بادار ته ورکړه او ځا ن پرې ازاد کړه.

په یوه بله واقعه کې داسې راغلي دي، چې حضرت عمرفاروقﷺ به د خپل خلافت په وخت کې د شپې له خوا د مدینې منورې په کوڅو کې گرځېده او د خپل رعیت له حال او احوال نه به یې ځان خبراوه. یوه شپه په یو کور کې ناوخته څراغ بل و. حضرت عمرفاروقﷺ چې ولیده، نوکور ته نژدې ورغی. ویې لیدل چې واړه ماشومان ژاړي او مور یې ورته وایي غلي شئ، اوس کټو پخیږي. کله چې حضرت عمرفاروقﷺ دا حالت ولیده، نو له هغه ښځې څخه یې د کور د ننوتلو اجازه واخیستله. کور ته ورننوت او د ماشومانو له مورڅخه یې پوښتنه وکړه: په کټو کې دې څه شی باندې کړي؟ ښځې په ځواب کې وویل: په کټوکې هیڅ شی نشته. هسې ماشومان پرې غلطوم. حضرت عمرفاروقﷺ ددې کار په لیدلو ډېر خپه او په بیړه روان شو. بیت المال ته لاړ او یوه بوجۍ اوړه او نور خوراکي توکي یې راواخیستل. پخپله شا یې د ورو ماشومانو کورته راوړل. د ماشومانو مورته یې ورکړل او ورته یې وویل چې له دې څخه ماشومانو ته ډوډۍ پخه کړي.

**اخځلیکونه:**

ـ اسلا مي تاریخ، راشده خلیفه گان، لیکوال استاد رضوان الله (لودین)، د چاپ کال (۱۳۸۷) همدرد چاپ ټولنه، میا اسلام پلازه، جلال اباد.

ـ سیرت النبيﷺ لومړی ټوک، مولف محمد عبدالمطلب بن هشام

# پنځم لوست

## تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | تشبیه | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پا ی کې به زده‌کوونکي لاند ې موخې تر لاسه کړي:<br>– زده‌کوونکي به د تشبیه پر معنا اومفهوم پوه شي.<br>– زده‌کوونکي به په شعر کې تشبیه وپېژني اوکله ناکله به یې پخپله هم وکاروي.<br>– زده‌کوونکي به په شعر کې د تشبیه د کارونې ښکلایي اړخ درک کړي.<br>– په زده‌کوونکو کې به د شعر د لوستلو قریحه پیاوړې شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به له مرستې پرته ځواب کړای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، د شعر دیکلمه، اورید ل، پوښتنه او ځواب او ډله ییز کار | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتا ب، دشعرونو یوه ټولګه یا دېوان، کتابچه، تباشیر او تخته | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفا هي پوښتنې او څارنه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، د کورني کار لیدل او د تېر لوست ارزونه | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | کله مو په شعر کې د تشبیه کلمه اوریدلې ده؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی د پښتوادبیاتو د لرغونې دورې پرځانګړتیاوو او پر هغې د اسلام د سپېڅلي دین او عربې ژبې او ادب د اغېز په اړه لنډې خبرې کوي. ښوونکی په خپلو خبرو کې دا څرګندوي چې ادبي صنعتونه (بدیع، بیان،عروض او قافیه) له عربي ژبې څخه پښتو او دري ته رانوتي او پښتو شعر او ادب یې اغېزمن کړی دی.<br>– ښوونکی له زده‌کوونکو څخه د مشابه، تشابه، تشبیه او ورته والي د کلمو پوښتنه کوي او وروسته په لنډو جملو کې زده‌کوونکو ته تشبیه د یو ادبي صنعت په توګه وروپېژني او په لوست پیل کوي.<br>– ښوونکی لوست په مناسب غږ لولي او په هره برخه کې یو بېلګه ییز شعر راوړي او زده‌کوونکو ته مشبه، مشبه | – زد ه کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او پر دې ځانونه پوهوي چې د اسلام د سپېڅلي دین له راتګ وروسته عربي ژبې څومره زموږ افغاني ادبیات تر اغېز لاندې راوستي دي.<br>– زده‌کوونکي د خپلو لومړنیو معلوماتو له مخې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي او دې ټکي ته پام کوي چې تشبیه د یو ادبي صنعت په توګه څه ته وایي.<br>– زده‌کوونکي له ښوونکي سره ملګرتیا کوي، لوست ته غوږنیسي، شعرونه اوري او پام کوي چې په شعرونو کې تشبیه او د هغې اړوند توکي څنګه | |

| | |
|---|---|
| به او د تشبیه توری ورپیژني. بیا له زده‌کوونکو غواړي پخپله داسې یو شعر پیدا کړي چې تشبیه پکې راغلې وي او پنځه واړه رکنونه یې وښودلای شي. | وپیژني او پخپله یې ومومي. |
| – ښوونکی په شعرونو کې د تشبیه وجهه، د تشبیه غرض، ډولونه او نور اړخونه وڅیړي او پر زده‌کوونکو یې تر هغه مشق او تمرین کړي، چې هغوی وکړای شي پخپله یې په شعرونو کې وموميي او نورو ته یې څرګند کړي. | – زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم په شعرونو کې د تشبیه وجهه، د تشبیه غرض، ډولونه او اړخونه په ښه کوي او نورو ته یې څرګندوي. |
| – ښوونکی دې له مشق اوتمرین څخه وروسته یو، یو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راوغواړي، شعر دې ورته ورکړي، زده‌کوونکی دې پر تخته ولیکي او ودې شني. | – یو، یو زده‌کوونکی د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي، شعر پر تخته لیکي او د تشبیه اړخونه او لوست پکې څیړي. نور زده‌کوونکي ورته پام کوي او د اړتیا په صورت کې ورسره مرسته کوي. زده‌کوونکي له اجازې او نوبت پرته خبرې نه کوي او د ټولګي نظم مراعاتوي. |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو وویشي او دنده دې ورکړي چې ټول زده‌کوونکي شعرونه پیدا کړي او د تشبیه لوست په کې وڅیړي. ډېر ټینګار دې پر هغو زده‌کوونکو وشي چې لږه مینه او وړتیا یې له ځانه ښودلې وي. | – زده‌کوونکي د پوهې د کچې په پام کې نیولو سره په ډلو کې تنظیمیږي او ورکړل شوې دنده څیړي او د خپل یو استازي په واسطه یې نورو ته اوروي. |
| – ښوونکی دې له زده‌کوونکو سره د فعالیتونو او په فعالیتونو پسې د راوړل شوو بیتونو په ځواب کې مرسته وکړي. | – زده‌کوونکي فعالیتونو ته ځوابونه وایي او که اړتیا وه له ښوونکي څخه مرسته غواړي. |
| ښوونکی دې زده‌کوونکو ته دنده ورکړي چې په کورونو کې د پخوانیو شاعرانو یو یا څو شعري دیوانونه ومومي، شعرونه ترې راواخلي او د تشبیه د لوست ټولې برخې دې پکې وڅیړي. | زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او د ښوونکي له لارښوونو سره سم یې په کورونو کې سرته رسوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**تشبیه:** په لغت کې تشابه او ورته ګڼلو ته ویل کیږي او په اصطلاح کې دور ته وایي. هغه اړیکې دي چې د یوه ځانګړي غرض لپاره یې ویونکي د دوو یا ډېرو ترمنځ د مشترکو صفتونو له امله د اداتو په واسطه څرګندوي. تشبیه په خبرو کې ښکلا، خوند او کیف زیاتوي. د تشبیه ارکان له مشبه، مشبه به او وجه شبه څخه عبارت دي. د تشبیه توري یا کلمې: په شا ن، غوند ې، په دود، په مثال، په رنګ، په څیر او نورې دي.

**اضافي معلومات:**

تشبیه: تشبیه په خبرو کې ښکلا، خوند او کیفیت زیاتوي او څرګندوي .که مور د یوه شي لپاره یو صفت راوړو او وغواړو چې دغه صفت ښه څرګند شي، په ذ هن کې ښه مصور شي او یا د پیژندلو وړ شي، نو یو بل داسې شی پیدا کوو چې دغه صفت پکې لا زیات څرګندوي او بیا یې له هغه سره ورته بولو، لکه: که وغواړو چې د علم ښه والی او رڼا

وښايو او ناپوهي تياره او بدي ځرګنده کړو، نو وايو: علم د لمر غونديې روښانه او جهل د تروږمي په څير تياره دی.
که ووايو: تورپيکی ښکلې ده. دا يوه عادي خبره ده، خو که ووايو تورپيکی د ګل غندې ښکلې ده، نو دلته له ګل سره تشبيه وشوه. په «تشبيه» کې اصل «مشبه به» وي په دې معنا چې د «مشبه وجه» پکې نسبت «مشبه» ته ډېره قوي وي. «مشبه او مشبه به» ته د «تشبيه» دوه خواوي يا اړخونه هم ويل کيږي.

د تشبيه ادات:

د تشبيه ادات هغه لفظ ته ويل کيږي چې تشبيه ترې ځرګنديږي او مشبه او مشبه سره ترې. پښتو کې د تشبيه ادات دادي: ۱- لکه، ۲- غونديې، ۳- ورته، ۴- په شان، ۵- ته به وايې، ۷- په ډول، ۸- په رنګ، ۹- په دود، ۱۰- کټ مټ، ۱۱- داسې، ۱۲- هغسې، ۱۳- هسې، ۱۴- دغسې.

بېلګې يې دادي:

زلمی لکه زمری دی. ګلاب د ياقوت غوندې سور دی. د ګلالۍ څيره سورګل ته ورته ده. ځمکه د هندوانې په څير ګرده ده. چمن د زمردو په شان شين دی. مالوچ داسې سپين دی ته به وايې چې واوره ده. ماشوم د ګل په ډول ښه ښکاري. شينواري د مومندو په دود مېلمه پال خلک دي. فيصل کټ مټ زبير غوندې دی. په پسرلي کې غرونه داسې ښه ښکاري، لکه ګلدار ټوکر چې پرې غوړېدلی وي.

د تشبيه ډولونه:

لومړی ويش (د دواړو خواوو له مخې)

تشبيه د دواړو خواوو (مشبه او مشبه به) له مخې په دوه ډوله ده. ۱- حسي ۲- عقلي.

حسي تشبيه: حسي تشبيه هغې تشبيه ته ويل کيږي چې د هغې درک او پيژندنه په پنځو ځرګندو حواسو کيدای شي. او عقلي تشبيه هغې ته ويل کيږي چې درک او پيژندنه يې په عقل سره کيږي.

د تشبيه دويم وېش:

د تشبيه دويم وېش د افرادو او ترکيب له مخې دی چې د تشبيه دواړه خواوې (مشبه او مشبه به) به يا: مفردې وي، لکه د کارغه غوندې مخ چې (مخ) مشبه دی، (کارغه) مشبه به دی او دواړه مفرد دي. يا به مرکبې وي لکه د وړکتوب زد ه کړه لکه د کاڼي کرښه ده. (د وړکتوب زده کړه) مشبه د ه او مرکب دی او د (کاڼي کرښه) مشبه به ده او دا هم مرکبه ده. يا به مشبه مرکبه وي او مشبه به مفرده وي، لکه: د ليلا غاښونه د رلۍ غوندې دي (دليلا غاښونه) مشبه دي او مرکب دي (رلۍ) مشبه به ده او مفرد ده. يا مشبه مفرده وي او مشبه به، به مرکبه وي، لکه: علم لکه د لمر رڼا ده. (علم) مشبه او مفرد دی (د لمر رڼا) مشبه به او مرکبه ده.

مفصله تشبيه:

دا هغه تشبيه ده چې د مشبه وجه (د ورته والي لامل) پکې ځرګند ياد شوی وي، لکه عبدالحميد بابا چې وايي:

لکه سر د پسه اور غاښـــونه سپين کا
ما له نـــــن له ډېره غمه خندا راغله

مجمله تشبيه:

دا هغه تشبيه ده چې د ورته والي لامل پکې ځرګند نه وي ياد شوی، سپين ګل لکه زمری دی، چې زړورتيا پکې نه د ه ياده شوې

نږدې سپکه (قریبه مبتذله ) تشبیه:

دا هغه تشبیه ده چې څرګنده وي او له مشبه نه مشبه به ته ذ هن ډېر ژر او په اسانۍ سره لېږدوي او کوم دقت او فکر ته اړتیا نه لري. لکه د ښکلي مخ تشبیه چې له سپوږمۍ سره وشي یا د اننګو تشبیه د ګلاب سره ورکړي.

ابتذال (سپکوالي) ته ویل کیږي، نو دې تشبیه ته ځکه قریبه مبتذله ویل کیږي چې د ورته والي لامل ډېر په اسانۍ سره او ډېر ژر پېژندل کیږي، نو په ذهن ډېره سپکه تمامیږي او د فکر او دقت درندوالي ته اړتیا نه پیښیږي.

لرې نا اشنا (بعید ه غریبه) تشبیه:

دا د مبتذ لې تشبیه په خلاف ده چې ډېره څرګنده نه وي او له مشبه نه مشبه به ذهن ته ژر او په اسانۍ سره نه راځي بلکه دقت او اند ته اړتیا پیښیږي

د تشبیه ګټې:

تشبیه د ډېرو غرضونو او ګټو لپاره راوړل کیږي او دا ټو ل په مشبه کې وي لکه تحسین، د پټ حال او وصف څرګندول، نااشنا اشنا ګرځول د اورېدونکي په ذهن کې ښه کښېنول، دروند ګڼل، سپکاوی، نادر او سخت ګڼل او داسې نور.

د تشبیه ځینې بېلګې:

تشبیه یو داسې بحر دی چې ساحل نه لري او ځینې مشهورې او مستعملې بېلګې یې دادي.

لکه: د ښکلي مخ تشبیه له سپوږمۍ سره، د بد رنګ مخ له تبۍ او کارغه سره او د زلفو له مارانو سره، د زړور له زمري سره او د بې زړه له ګیدړ سره، د مکرجن او چلباز له ګیدړ سره او د کم عقل له خره سره، د جنګیالي او غورځنګي له باز سره، د غفلت له خوب سره او د علم او عدل له رڼا سره، د ناپوهۍ او ظلم له تیارې سره، د کلکوالي له تیږې، اوسپنې، فولادو او سندان سره، د نازکوالي د ګل او پیروي سره، د لوړوالي له غره او اسمان سره، د ټیټوالي له کندې، کوهي او تحت الثری سره، د نه کیدونکي، نه پیدا کیدونکي او نه راګرځېدونکي له عنقا سره، د پاریدلي او هیجان له طوفان سره، د غضب، غوسې او مصیبت له اور سره، د سوړوالي له واورې، ږلۍ او اوبو سره، د تېز آس له باد سره، د ښو خبرو له مرغلرو سره، د بې ځایه مداخله کوونکي له مچ سره، د زیان رسوونکي له مار او لړم سره، د سخي له حاتم طايي سره، د حریص له کارغه او ګونګټ سره، د ګړندي له باد سره، د ګرم او تېز له مرچک سره، د بې شرم او سپین سترګي له سپي سره، د ضدیت له ابوجهل سره، د رېښتوني له ابوبکرﷺ سره، د عادل له عمر بن الخطاب او عمر بن عبدالعزیز رضی الله تعالی عنهما سره، د سخي له عثمانﷺ سره، د زړور له علي کرم الله و جههُ سره، د ظالم له حجاج بن یوسف سره.

## شپږم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | د تشبیه ویش | | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>ـ زده‌کوونکي به تر یوې اندازې له ادبي فنونو سره بلد شي.<br>– د تشبیه ډولونه به وپېژني.<br>– په پښتو شعرونو کې به تشبیه او د هغې ډولونه پیدا کړي.<br>– د خبرو او لیکلو ځواک به یې پیاوړی شي.<br>– د متن د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول ځواب کړای شي. | | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې |
| | لوستل، لیکل، ویل، فردي او ډله ییز فعالیت | | د تدریس لارې |
| | شعري ټولګې، د ادبي فنونو کتاب، درسي کتاب، توره تخته، تباشیر او داسې نور. | | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفا هي ارزونه، لیکنۍ ارزونه او د یادداشت کتابچه | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴دقیقې | سلام، روغبړ، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تیر لوست ارزونه | | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦دقیقې | د تشبیه په اړه له زده‌کوونکو سره د خبرو اترو له لارې د تشبیه ډولونو ته د زده‌کوونکو پام اړول. | | د انګېزې رامنځ ته کول |
| ۳۵دقیقې | د زده کوو نکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | |
| | –زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او د اړتیا په وخت کې یادداشت اخلي.<br>–زده‌کوونکي د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي او ځانونه پوهوي.<br>–زده‌کوونکي د تشبیه ډولونه د تختې له مخې لیکي او پر بېلګو یې ځانونه پوهوي.<br>–دوه، دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او دتشبیه ډولونه تکراروي.<br>–زده‌کوونکي لوست ته غوږ نیسي<br><br>ـ زده‌کوونکي لوست ته غوږ نیسي او ژوره پاملرنه کوي. | – ښوونکی په شعر کې د ادبي صنعتونو او شعري ښکلاوو په اړه له زده‌کوونکو سره هر اړخیزې خبرې کوي.<br>– ښوونکی په کلام کې د تشبیه د کارولو د ارزښت په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>– ښوونکی د تشبیه ډولونه یو په یو پر تخته لیکي، زده‌کوونکو ته یې ورپېژني او بېلګې یې راوړي.<br>– تر دې وروسته دوه، دوه زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته راغواړي او د تشبیه ډولونه پرې تکراروي او بېلګې پرې راوړي.<br>– ښوونکی لوست لولي او ځای ځای له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي.<br>– ښوونکی څو زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته | |

| | |
|---|---|
| رابولي او ورته وايي په خپلو منځونو کې داسې خبرې وکړي، چې تشبيه پکې کارول شوې وي. | |
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې د تشبيه د ډولونو په اړه په خپلو منځونو کې خبرې اترې وکړي او د ستونزمنو برخو په اړه له ښوونکي څخه معلومات وغواړي. | –درې زده‌کوونکي له لا رښوونې سره سم لوست په وارسره لولي، ښوونکی ورسره مرسته کوي. |
| – وروسته ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې دوه، دوه زده‌کوونکي د تشبيه د ډولونو په اړه نورو ته معلومات ورکړي. | – دوه زده‌کوونکي د ټولگي مخې ته راځي او د تشبيه د ډولونو د ارزښت په اړه خبرې کوي.<br>_ دوه زده‌کوونکي د تشبه د ډولونو په باب نوروته معلومات ورکوي. |
| – ښوونکی زده‌کوونکي پر ډلو ويشي. هرې ډلې ته دوه، دوه بيتونه ورکوي او لارښوونه ورته کوي چې په بيتونوکې د تشبيه ډولونه ومومي او نورو ته يې بيان کړي. | – زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم په وارسره د تشبيه يو، يو ډول نوروته تشريح کوي د اړتيا پروخت له ښوونکي مرسته غواړي.<br>– زده‌کوونکي په ډلوکې فعال گډون کوي او له مشورې وروسته د هرې ډلې په استازيتوب موضوع نوروته تشريح کوي، ښوونکی څارنه او مرسته کوي. |
| – ښوونکی لوست په لنډيز ډول بيانوي او له زده‌کوونکو څخه د ځينو پوښتنو په ترڅ کې د زده کړې ارزونه کوي. | – زده‌کوونکي غوږ نيسي او پوښتنو ته ځواب وايي. |
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | – زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم کړنه کوي. |

**اضافي معلومات:**

د تشبيه ويش:

تشبيه د طرفينو د موقيعت په لحاظ په دوه ډوله ده: الف: مفروقه تشبيه، ب: ملفوفه تشبيه

مفروقه تشبيه هغه ده چې په يوبيت، يا مسره کې څو مشبه او څو مشبه به داسې راغلی وي چې په هره مشبه پورې مشبه به نژدې واقع وي، لکه کامگارخان چې وايي:

لعل دې شونډې غاښ مرغلرې

خوله دې غنچه قند دې خبرې

کامگار گدای شه د ستا په درکې

چيرې يې نه کا رقيبـــــان ليرې

د پورته شعر لومړی بيت په لومړی نيم بيتي کې شونډې مشبه، لعل مشبه، غاښ مشبه، مرغلرې مشبه به دی، په دويم نيم بيتي کې خوله مشبه، غنچه مشبه به، خبرې مشبه، قند مشبه به دی.

ملفوفه تشبيه:

هغه تشبيه ده، چې په يوه مسره يابيت کې مشبه او بله مسره يا بيت کې څومشبه به راشي، لکه: د خوشحال بابا په لاندې شعر کې:

تورو زلفو ته يې گوره ښايسته دواړه رخســـار

د جهان په باغ کې نشته سنبل هسې سمن هسې

په پورته بيت کې زلفې مشبه، سنبل مشبه به. همدارنگه رخسارمشبه او سمن مشبه به دی، دا چې به يوه نيم بيتي کې

مشبه او په بل نیم بیتي کې دواړه مشبه به راغلي دي.
مبتذله تشبه:
هغه تشبیه ده چې په شا عرانوکې خورا زیات استعمال ولري، لکه:
مخ دې لکه ګل صنم
زلفې دې سنبل صنم
پدې مثا ل کې مخ له ګل سره او زلفې له سنبل سره تشبیه شوي دي چې هر شاعر دغسې تشبیهات زیات استعمالوي او د اکثرو شاعرانو په شعرونو کې دمخ تشبیه له ګل سره او د زلفو له سنبل سره شوې ده، لکه:
که هر څو د ښو غشې کاږه ولي
یو له نښې د زړه نه د رومي خطا
په غوجل کې باري خر اوکچرښه دی
نه په خونه کې جا هل او بې طلب
دادې کمڅۍ په لیچو بلوسي
که دې ماران په لېچو دوه ساتلي دینه
مفصله تشبه:
هغه تشبیه ده چې دتشبیه وجه پکې لفظا ذکرشوې وي، لکه: علي خان چې وایي:
مجمله تشبیه:
هغه تشبیه ده چې د تشبیه وجه لفظا پکې نه وي ذکر شوي، لکه:
جنګوم اوراو پنبه له نادانیه
چې جلب د ستادناز نیسم په نیاز
په پورته بیت کې ناز مشبه اور مشبه به او په عین وخت کې د ناز په کلمه کې استعاره هم شته، ځکه چې جلب د قرینې په ډول راغلی دی او له ناز څخه د آس معنا هم اخستل کیږی. نو ناز مستعارله، آس مستعارمنه او د تشبیه په صورت کې د ناز اواور ترمنځ وجه شبه یا مشترک صفت سوزول دي کله که په اور سړی سوزي خو د یوې ښکلې محبوبا ناز هم تراور کم نه دی. دغه ډول نیاز مشبه پنبه مشبه به. کله چې نیازمند عاشق او محتاجه عاشق د یو امید په خاطر د تقاضا په ډول ښکلې معشوقې او ښکلې محبوبا ته کړه غاړه او کچکول په غاړه دریږي د معشوقې د تکبراو غرور عرضه د بینوا عاشق په مقابل کې کمیږي، نو وایو چې نیاز او احتیاج د محبوبا غرور ورزیاتوي او د نیاز او پنبې ترمنځ د قوت زیادت وجه شبه ده اولفظاپه کلا م کې نه ده ذکرشوې، نو د وجه شبه په لحاظ مجمله تشبیه ده اومجمله تشبه په دوه ډوله ده.
الف قریبه مجمله تشبه:
هغه مجمله تشبیه ده چې دتشبیه وجه یې ژراوبې له ډیره فکره ذهن ته راشي، لکه: د رحمان بابا په لا ندې بیت کې:
چې زما په چمن راشي ګستاخي کړي
د شبنم په څیر یې عمر یو زما ن دی
دا تشبیه اګرچې مشهوره نه ده ولې د شبنم د عمرکموالی چې د لمر تر راختو پورې وي، هرچاته معلوم دی، نو په پورته بیت کې د مشبه او مشبه به ترمنځ وجه شبه ده، په بیت کې لفظا نه ده ذکرشوې، مګر ذهن ته ژرراځي، نو قریبه مجمله تشبیه یې بولي.
دویمه بعیده مجمله تشبیه:

هغه تشبیه ده چې د تشبیه وجه یې پس له ډېره فکره پیداکړه شي، لکه: د کاظم خان شیدا په دې بیت کې.

په شمشېر د قاتل اب وینم د وینو
که ښکاره یې په ابرو شوې د سروټیکه

په پورته بیت کې ابرو مشبه، شمشیر مشبه به، ټیک مشبه د وینو اب مشبه به، د ټیک او د وینو د اب ترمنځ سوروالی وجه شبه ده، مګر د ابرو او شمشیر ترمنځ وجه شبه کوږوالی دی چې پس له ډیره فکره پیداکیږي، نوځکه بعیده مجمله تشبیه ورته ویل کیږي.

د تشبیه ویش د اداتو (تورو) په لحاظ:

مرسله یا مطلقه تشبیه هغه تشبیه ده چې د تشبیه توري یا کلمې پکې ذکرشوي وي، لکه: په لاندې پښتولنډۍ کې:

زما د ګل په شان جانانه
زه به له تانه زړګی څنګه صبرومه

شاعر په پورته لنډۍ کې خپل محبوب له ګل سره تشبیه کړی دی یانې یار مشبه او ګل مشبه به دی او په شان د تشبه توری یا کلمه ده څرنګه چې په کلا م کې ذکر ده، نو مرسله یا مطلقه تشبیه یې بولي.

**موکد ه تشبیه:**

هغه تشبیه ده چې د تشبیه توري پکې ذکرشوي نه وي، لکه: حافظ الپوري چې وایي:

نه به په زورپه زاري خلاص شي، نه په عقل دانش
دنیا دامګا ه ژوندون دانه اجل یې دام ایښی دی

د پورته بیت په دویم نیم بیتي کې درې تشبیه دي یعنې دنیا یې د دام ګاه سره، ژوندون یې د دانې سره،اجل یې د دام سره تشبیه کړی دی او په درې واړوکې  د تشبیه توري نه دي ذکرشوي، نو موکده تشبیه ده.

موکده تشبیه درې ډوله ده.

اضافي موکده تشبیه:

هغه تشبیه ده چې د مشبه به ترمنځ یې اضافي ترکیب موجود وي، په داسې ډول چې مضاف الیه مشبه او مضاف یې مشبه به وي، لکه:

د حنان صحت په دم په افسوس نه شي
پر زړه و خوږ د اشناد زلفـــــو مار نن

په پورته بیت کې اضافي موکده تشبیه په لاندې ډول ده :(د) د اضافت توری، زلفې مضاف الیه چې مشبه واقع دی مار مضاف چې مشبه به واقع شوی.

دویم توصیفي موکده تشبیه :

هغه تشبیه ده چې توصیفي ترکیب ولري، پدې ترتیب چې صفت دمشبه به اوموصوف دمشبه په ډول راوړل شوی وي، لکه: د حنان په لاندې بیتوکې.

چې تعریف د شکرلبو یې تل کاږم
له خامې څخه مې توی شهد وشکر شول
دا چې ته ورغلې با لره ګلرخې
له هوسه غنچه ځکه په خنداشوه

په شکر لبو او ګل رخ کې توصیفي ترکیب موجود دی. په داسې ډول چې شکر، ګل صفت او مشبه به دي، لب، رخ موصوف اومشبه دي.

دریم موکده محض تشبیه:

هغه موکده تشبیه ده چې اضافي یا توصیبي ترکیب ونلري، لکه:

خدای و ماوته ګلونه د جنت کړل

که داغونه مې په زړه باندې صنم ږدي

په پورته بیت کې خیال مشبه، میلمه، مشبه به، زړه مشبه، کوربه مشبه به دي. څرنګه چې د طرفینو ترمنځ یې کوم توصیفي یا اضافي ترکیب موجود نه دی، نو موکدمحض تشبیه یې بولي.

عادي او غیر عادي تشبیه ویش:

عادي تشبیه پدې تشبیه کې لکه څنګه چې عادت دی دوجه شبه په لحاظ مشبه تر مشبه قوي وي اوهم دوجه شبه معکوسه مانا ورځنې نه مرادیږي، لکه:

مینې د دلبرمې ځګرسوی لکه سکورو

غم د بیلتانه مې سوی سکور ولګاوه

په پورته بیت کې ځګر مشبه، سکور مشبه به دی، لکه د تشبیه توری (سوی) یې وجه، د سولو او توروالي قوت په سکورکې ډېردی یعنې دوجه شبه په لحاظ مشبه ترمشبه قوي ده، نو عادي تشبه یې بولو.

غیرعادي تشبه:

غیر عادي تشبیه په دوه ډوله ده:

الف: تفصیلي تشبیه: پدې تشیه کې دوجه شبه په لحاظ مشبه ترمشبه قوي وي، لکه په لاندې مثالو کې.

سرو لبانو دې یاقوت کړه

سره په وینو کې غرقاب

مشک دې هسې ستا وخط ته

لکه مشکوته تراب

نرګس کوزګوري له شرمه

ستا د سترګو په جواب

اب وتاب کړه ستا دلبو

شرمنده در نایاب

پورته شعر د حمید مومند دی په لومړي بیت کې لبان مشبه یا قوت مشبه به، په دویم بیت کې خط مشبه، مشک مشبه به، په دویم بیت کې سترګې مشبه، نرګس مشبه به، په څلورم بیت کې لب شبه، درنایاب مشبه به دي.

څرنګه چې دوجه شبه قوت په ټولومشبه ګانوکې زیات دی، نو تفضیلي تشبه یې بولو.

ب: مقلوبه تشبیه:

پدې تشبیه کې د عادي وجه شبه غرض تضاد وي، لکه:

میلمانه دې وږي درومي له درباره

ته زموږ د زمانې سخي حاتم یې

په پورته بیت کې ته د مفرد مخاطب ضمیرمشبه، حاتم مشبه به اوسخا یې وجه شبه ده.

پدې مثال کې د وجه شبه غرض تضاد دی نه سخا، بخیلتوب دی، نوځکه یې مقلو به تشبیه بولو.
د ماهیت په لحاظ د تشبیه ویش:
تشبیه د ماهیت په لحاظ په څلور ډوله ده:
لومړی محسوسه تشبه له محسوس سره:
چې د تشبیه دواړه اړخونه محسوس یعنې په پنځوګرګند و حواسوچې په عام عرف کې ورته حواس لامسه وایي، کتل، بوی کول، اوریدل، څکل او لاس وهلو سره معلومیږي. لکه په لاندې لنډۍ کې:
شونډې دې پاڼې د ګلاب دي
نرۍ خوله پرې لکه پرخه خوندکوینه
په پورته لنډۍ کې شونډې او خوله مشبه دي، د ګلاب پاڼې او پرخه مشبه به دي چې د تشبیه دواړه طرفه په حواسو درک کېدای شي، نو د محسوس تشبیه له محسوس سره ده.
دویم د معقول تشبیه د معقول سره:
چې طرفین یعنې مشبه او مشبه به یې دواړه معقول وي. په حواسونه معلومیږي، بلکې له ذهن سره تعلق لري لکه سید رسول رسا چې وایي:
خوشحالي دیار ژوندون خپګان یې مرګ دی
مرګ او ژوند دواړه پیښیږي اشنایۍ کې
د عاشق نه د محبوب خوشحالیدل د هغه ژوند دی او د محبوب خپه کېدل په ژوندکې مرګ دی. په اشنایي کې دا دواړه حالته راځي. دلته خوشحالي د ژوند سره او خپګان د مرګ سره تشبیه شوي دي او د تشبیه اړخونه ذهني دي محسوس نه دي.
د معقول تشبیه له محسوس سره:
لکه کاظم خان شیدا چې وایي:
کړه یې وا لکه ګره د تورو زلفو
باریکي لري تمام دیوان زما
د دیوان باریکي مشبه، د تورو زلفو غوټه مشبه به چې مشبه یې معقول او مشبه به یې محسوس دی.
د محسوس تشبیه له معقول سره:
الهي پیرمحمد ګډ دیار په کوی کړي
دې جنت ته هر مومن انتظار وکېښ
کوی یا کوڅه مشبه، جنت مشبه به دی چې کوي محسوس او جنت معقول دی.
چې یې خال په مخ کې وینم حیرانیږم
په جنت کې ولیږدي عاصي یو ګام
په پورته بیت کې خال مشبه، عاصي مشبه به، مخ مشبه، جنت مشبه به، دمخ او جنت ترمنځ تشبیه محسوس د معقول په مقابل کې ده.
د تشبیه ویش د طرفینو د تعادل په لحاظ:
لومړی: تسویه: د تسویې معنا برابر والی دی هغه تشبیه ده چې د یوه مشبه لپاره یوازې یوه مشبه به راوړل شوې وي وي، لکه: په لاندې مثالوکې.

که يې مخ په زلفوپټ وي باک يې نشته
تل په گنج باندې پراته وي اژدهار

په پورته بيت کې مخ مشبه، گنج مشبه به، زلفې مشبه، اژدهار مشبه به. څرنگه چې د يوې مشبه لپاره يوه مشبه به راغلې، نوتسويه يې بولو.

دويم جمع په دوه ډوله ده:

الف: چې د يوې مشبه لپاره څومشبه به راغلي وي، لکه:

دا څه مخ دی منور
چې هم شمس دی هم قمر
دا څه زلفې دي مشکينې
چې هم مشک دی هم عنبر
دا څه شونډې دې ميگونې
چې هم مې دي هم شکر
دا څه سيب د زنخدان دی
چې هم سيم دی هم ثمر

په لومړي بيت کې مخ مشبه، شمس و قمر مشبه به، په دويم بيت کې زلفې مشبه، مشک، و عنبر مشبه به دريم بيت کې شونډې مشبه، مې و شکر مشبه به، په څلورم بيت کې زنخدان مشبه، سيم و ثمر مشبه به.

په پورته مثالونو کې مو وليدل چې ديوې مشبه لپاره له يوې نه زيات مشبه بهات راغلي دي.

ب: چې د څو مشبه گانو لپاره يوه مشبه به راغلي وي، لکه:

که شکرې که نبات شات وحلوا خورم
واړه زهر دي پرما چې بې له تا خورم

په پورته بيت کې شکرې نبات، شات، حلوا مشبه او زهرېي مشبه به دي يعنې مشبهات ډير او مشبه به يې يوه ده.

د تشبيه ويش د بسيط والي او ترکيب په لحاظ:

د طرفينو د بسيط والي او ترکيب په لحاظ تشبيه په ۹ ډوله ده.

اول: د بسيطې تشبيه له بسيطې سره:

چې د تشبيه دواړه خواوې بسيطې وي، لکه:

د سرو سترگو له مژگانويې څه وايم
تيز سيخونه دي په زړه کې د شيدا ځي

په پورته بيت کې مژگان مشبه، تيز سيخونه مشبه به دي. څرنگه چې د تشبيه دواړه اړخونه يعنې مشبه او مشبه به بسيط دي، نو د يوه بسيط تشبيه له بسيط سره ده.

دويم د بسيط تشبيه له بسيط مقيد سره.

لکه په لاندې مثال کې:

په ناګاه له لاسه اوړي
صورت ډک له وینو طاس دی
په پورته بیت کې صورت مشبه، طاس مشبه به، مګرطاس (کټوری یا جام) د وینو په واسطه قید دی ، نو د تشبیه یو طرف یعنې مشبه بسیط او بل طرف یعنې مشبه به یې بسیط مقید دی.

دریم: د بسیط مقید تشبیه له بسیط مقید سره:
لکه پدې بیت کې:
د دنیا خونه د باد په مخ ایرې دي
پاینده چارې هورې دا مسخرې دي
په پورته بیت کې خونه مشبه، ایرې مشبه به، لیکن خونه د دنیا په واسطه او ایرې د باد په واسطه قید دي.
څلورم: مرکبه تشبیه له مرکب سره:
چې د تشبې دواړه اړخونه مرکب وي، لکه د علي خان پدې لاندې بیت کې:
دا په توره شپه کې نمردی حیرانېږم
که جبین د یار جلوه کا په مشکینه کلا له کې
الول زلفوته کلا له وایي. شاعر وایي د اشنا یا محبوب سپین تندی دی چې په الول تورو زلفو کې ځلیږي اوکه په توره شپه کې لمر راوخوت. دلته د تشبیه دواړه اړخونه مرکب دي.
یعنې په توره شپه کې د لمر راختو مجموعي یو ذهني تصویر ته تشبیه ورکړل شوې ده، د تورو زلفو په منځ کې سپین تندي نه اخیستل شوي تصویر سره.
پنځم مرکب تشبیه له بسیط مقیدسره:
لکه:
سپین نمرې اغوستي په ښوسرې کوښې نوخط
څنګه ښه رادرومي، لکه تکه سپینه بته
هغه محبوب چې سرې کوښې یې په ښو، نوخط وي او سپینې جامې یې اغوستې وي مشبه، بته مشبه به، د بتې کلمه د سپینې دکلمې په واسطه قید ده او (تکه) کلمه د سپین د کلمې لپاره د تاکید شکل لري.
شپږم د مرکب تشبیه له بسیط سره:
چې مرکب ته د بسیط سره تشبیه ورکړی شوې وي.
لکه: عبدالقادر چې وایي:
لکه څوک چې په ویشتل د ګلو خوښ شي
هسې خوښ شي مشتاقان دیارله سوکه
په پورته بیت کې دیارله سوکه خوښیدل مشبه، یوڅوک دګلا نو په ویشتل خوښیدل مشبه به، خوښېدل یې مشترک صفت یا وجه شبه ده. دبیت دویم نیم بیتي دیاردکلمې په واسطه قید دی. دلته دیاردکلمې په واسطه بسیط شوی. له شاعر سره په ذهن کې یار سوک، وهل، یوترکیبي حالت لري.
اووم : دبسیط مقید تشبیه له مرکب سره:
نادانې ګنه غفلت د راه روانو

لکه طفل د زانگو په تله کې خواب کا

د راه روانوغفلت مشبه، دطفل خوب دزانگو په تله کې مشبه به، ناداني دراه روانو دغفلت لپاره قیدده.

اتم: دبسیط مقید تشبیه له بسط غیر مقید سره :

دادچا دخدنگ خیال نن پکې گرځي

نارامه مې سینه لکه سیماب شوه

په بیت کې سینه چې دمې په واسطه قید ده مشبه، سیماب مشبه به، نارامي یې وجه شبه ده.

نهم: دبسیط تشبیه له مرکب سره:

چې اول اړخ یې مفرد اودویم مرکب وي، لکه: په لاندې بیت کې:

اه مې لکه دود له درد او سوزه تر خوله ووت

چتر مې په سرشو سایبان راسره درومي

اه مشبه، دود مشبه به دی. اه په داسې حال کې چې له خولې ختلی اود شاعر په سر یې چتر جوړ کړی اوسایبان غوندې یې ورسره حرکت کړی، ترکیبي اومرکب حالت لري او دود مشبه به مفرد را غلی دی، ځکه چې د هغه نور حالتونه ورسر ه نه دي را غلی. دغه راز په لاندې بیت کې وگورئ:

که دې پښه په کرښه کېښوه لاړې وسوې

دغه دوه سترگې څلورکړه په کمال ځه

شاعروایي: ژوند ټول دخطراتو نه ډک دی، نفس شیطان قدم په قدم باندې سړی تېرباسي. که د شرعې د حدودو له کرښې نه دې بهر قدم کېښود، نو لاړې دایمي ژوند دې تباه شو.

پدې دنیاکې دا خپلې سترگې د دوو په ځای څلور وړه، هر شي ته فکر کوه یو، یو قدم ډېر په احتیاط کېږده چې نفس، شیطان دې خطانه کړي. دلته ژوند ته تشبیه ورکړی شوې:

یا لکه: علي خان چې وایي:

لکه وڅاڅي شونتې د اور له تاوه

هسې ماله نن دې سوخته ژړا راغله

شونتې د نښتر د قسم نه یو غوړ لرگی دی. د کوهستان خلک ترېنه د شمعې کار اخلي د هغه په سرچې اوربل شي، نو بل سرته ترېنه غوړ څاڅي. شاعر وایي: زما په زړه کې هم د عشق اوربلیږي او لکه څنگه چې د شونتې د بل سرنه غوړڅاڅي دغسې زما د زړه د سوخت او تاو په وجه له سترگو څخه اوبه بهیږي.

دلته ژړا مفرد، د اور تاو د شونتې څڅېدل له مرکب سره تشبیه ورکړی شوې ده

**اخځلیک:**


ادبي فنون (بدیع، بیان) مولف پوهنمل محمداقا شېرزاد.

## اووم لوست

## د تدريس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | نشه يي توکي | |
| د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– په عمومي توگه به د نشه يي توکو پر زيانونو او د ځوانۍ د پړاو پر حساسيتونو وپوهيږي.<br>– د نشه يي توکو له کارونې څخه به يې کرکه پيدا شي.<br>– نور ځوانان به د نشه يي توکو پر زيانونو يې وپوهوي او پر نشې د روږدي کېدو مخه به يې ونيسي.<br>– په خپل کلي او گاونډ کې به له کروندگرو سره مرسته وکړي چې د کوکنارو او چرسو د کرکيلې پر زيانونو يې وپوهوي او په دې توگه به د هغوی د کرلو مخه ونيسي.<br>– د ليک او وينا ژبه به يې پياوړې شي.<br>– د لوست د پای فعاليتونه به په يوازې توگه ځواب کړای شي. | |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز او يو کسيز فعاليتونه | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تباشير، کتابچې، قلم او د امکان په صورت کې پر نشې د روږدو کسانو عکسونه | |
| د ارزولو لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه، پوښتنې، ډله ييز فعاليتونه، د ازادې سيالۍ فعاليتونه او نور | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | روغبړ، احوال پوښتنه، د ټولگي تنظيم، د کورنۍ دندې کتل، د حاضرۍ اخيستل، د تېر لوست ارزونه | ۴ دقيقې |
| د انگېزې رامنځته کول | د نشه يي شخص د ژوند او حالت د انځورولو او د يو زده‌کوونکي له خوا پر نشې د يو روږدي شخص د تمثيل له لارې د لوست پيلول. | ۶ دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| – ښوونکی په رواني لحاظ د ځوانۍ د دورې پر حساسيتونو غږيږي او په دې پړاو کې په اسانه د ځوانانو د انحراف په اړه معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د نشې او پر نشې باندې د روږدو انسانانو په اړوند خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.<br>– ښوونکی له زده‌کوونکو غواړي چې پر نشه يي توکو باندې د روږدی کېدو د لاملونو په اړوند خپل نظريات وړاندې کړي. | – زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نيسي او دې ټکي ته پام کوي چې څنگه د ځوانۍ په پړاو کې يو ځوان ژر او اسانه ښوييدلای شي.<br>– زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولگي مخې ته راځي او د نشې او يا پر نشې باندې د روږدي شخص په اړه خپلې تجربې بيانوي.<br>– زده‌کوونکي په خپل وار د خپلو تجربو له مخې پر نشې باندې د روږدی کېدو لاملونه بيانوي او خبرې اترې پرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته د نشه يي توکو پر زيانونو خبرې کوي او يو په يو يې ورته بيانوي. ښوونکی د نشه يي توکو د بېلا بېلو ډولونو نومونه اخلي او د هغې له جملې څخه هيرويين زده‌کوونکو ته ورپېژني. | – زده‌کوونکي پر دې ځانونه پوهوي چې د نشه يي توکو په کارونې په ټولنې کې رنگارنگ اخلاقي او جنايي جرمونه پيداکيږي، جسمي، ذهني او اخلاقي روغتيا له منځه وړي، فردي شتمني په اوبو لاهو کوي او آن ټوله ټولنه له خطر سره مخامخ کوي. |
| – ښوونکی لوست پر زده‌کوونکو لولي. | – زده‌کوونکي لوست لولي او د هيرويينو او د هغو د زيانونو په اړوند خپل معلومات پراخوي. |
| – ښوونکی د لوست لنډيز وړاندې کوي او د نشه يي توکو بدني، اخلاقي، اقتصادي او ټولنيز زيانونه په ډېر څرگند ډول زده‌کوونکو ته بيانوي. | – زده‌کوونکي ښوونکي ته غوږ نيسي او د نشه يي توکو د ناوړو پايلو او زيانونو په اړه خپله پوهه پراخوي. |
| – ښوونکی له زده‌کوونکو غواړي چې په ټولنه کې پر نشې د يو روږدي شخص د ټولنيز دريځ په اړه خبرې وکړي. | – څو زده‌کوونکي پر نشه يي توکو د روږدي شخص د ټولنيز دريځ په اړه خبرې کوي. |
| – ښوونکی په ټولگي کې د زده‌کوونکو يوه غونډه جوړوي او د کتاب له دريم فعاليت سره سم يې پر مخ وړي. | – زده‌کوونکی د ښوونکي له لارښوونې سره سم غونډه جوړوي، د غونډې مشر، د مشر مرستيال، منشي او وياند ټاکي. څو زده‌کوونکي د نشه يي توکو د کرکيلې، سوداگرۍ، لېږد رالېږد او پر هغې د روږدي کېدو په اړه مقالې ليکي. غونډه جوړيږي او له معمول سره سم يې کار پر مخ ځي. يو زده‌کوونکی په پای کې د غونډې بهير ارزوي او د پريکړه ليک په وړاندې کولو غونډه پای ته رسيږي. |
| – ښوونکی له زده‌کوونکو غواړي وواييي چې په خپل چم او گاونډ کې څنگه د کوکنارو د کرکيلې د مخنيوي په اړه د کروندگرو قناعت ترلاسه کولای شي. | – زده‌کوونکي په دې اړه فکر کوي چې څنگه کولای شي کروندگرو ته قناعت ورکړي چې په خپلو کروندو کې د کوکنارو او چرسو له کرکيلې لاس واخلي. |
| – ښوونکی د هر درسي ساعت په پای کې د لوست په اړوند کورنۍ دنده ورکوي. | ـ زده‌کوونکي د کورنۍ دندې په اخيستلو ځانونه پوهوي او په خپلو کوررونو کې يې سر ته رسوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول :**

هيرويين سپين رنگ ته مايله قهوه يي رنگه ماده ده چې له مورفينوڅخه لاسته راځي. هېرويين د هغو نشه يي توکو په ډله کې راځي چې د روږدي کېدو خطر يې ډېر لوړ دی. هيرويين د مورفينو له تقطير څخه لاس ته راځي. هيرويين يې لومړي په طبابت کې د مورفينو پر ځای کارول. کله چې څرگنده شوه دا مواد له مورفينو څخه هم خطرناک دي، نو د هغې پر جوړولو او کارولو يې بنديز ولگاوه. دا داسې وخت و چې ډېر خلک پرې روږدې شوي وو. روږدو خلکو هغه په بېلا بېلو ډولونو کارول، لکه څکول، تر پوستکي لاندې او په رگ کې پيچکاري کول او نور. هيرويين، مورفين او اپين د انسان بدني او فزيکی وړتيا او جنسي قوه لومړی کمزورې کوي او بيا يې له منځه وړي.

**اضافي معلومات:**

هیرویین د مورفین له کورنۍ څخه دي. د استیلاسیون او سرکې په زیاتولو یې له بوی څخه مخنیوی کیږي. دا ماده ډېره ترخه او بې بویه ده. دا توکي د سختو او قوي مرگوني نشه یي توکو له ډلې څخه دي او له تریاکو څخه لاسته راځي. کیماوي نوم یې "دای استیل مورفین" دی. نوموړی توکی لومړی ځل په ۱۸۷۴م کال د یو انگلیسي عالم له خوا کشف شو. په ۱۸۹۰م کال یو شمېر نورو الماني عالمانو پر نوموړې ماده باندې څېړنې او تحقیقات ترسره کړل. د څېړنو په پایله کې ثابته شوه چې له دې مادې څخه د انسانانو د ځینو ناروغیو، لکه: نري رنځ، د تنفسي سیستم په خرابوالي او نورو ناروغیو د درملنې لپاره کار اخیستل کیږي. په ۱۹۹۰م کال کې هیرویین د اغیزمنې درملنې په توگه پر مورفینو باندې د روږدو کسانو لپاره وکارول شول. تریاک لومړی پر مورفینو او وروسته په هېرویینو بدلېږي. مورفین له تریاکو څخه تقریبا سل ځلې او هیرویین له مورفینو څخه تقریبا څلور پنځه ځلې قوي دی. له همدې کبله هیرویین د ډېر خوږ او درد د له منځه وړلو لپاره د قوي نشه یي توکو په ډله کې شمېرل کېږي. استعمال یې خورا زیات خطر لري، ځکه چې په اسانۍ سره سړی روږدی کولای شي. که چېرته په دغو ناوړو زیان رسوونکو توکو اخته کسان ۳۶ ساعته د دغو توکو له کارولو څخه بې برخې شي، د ډېرو سخت ربړېدل ورته پیدا کیږي او ان ټول بدن یې بې واکه او بې حاله کیږي او رمباړې وهي. خوب دومره پرې غالب وي چې په شپو شپو یې سر له بالښته نه پورته کېږي. کله خو په دغه حالت کې له مرگ سره هم مخامخ کېږي. په ډېره لږه موده کې له ورځني ژوند څخه وروسته پاتې کېږي او د ټولنې پر اوږو پېټی کېږي. هیرویین له کوکنارو څخه د نورو جوړو شوو نشه یي توکو، لکه اپین، مورفین او کودیین په څېر د بدن د بېواکه کولو او سستۍ راوستلو اغېز لري. هیرویین په بدن کې د تودوخې احساس رامنځته کوي، چې لامل یې د ځینو رگونو پړسېدل دي. همدا راز قبضیت هم رامنځته کولای شي. د هېرویینو ډېر کارول د بېسدۍ (کوما) او تنفسي جهاز د کار د پر ېښودلو په صورت کې د مرگ لامل کېدای شي.

د هیروییینو د ډېرې کارونې له امله د بدن اړتیا ډېرېږي او لږه اندازه بیا نه بس کیږي. اخته کس د لازم اغېز د ترلاسه کولو لپاره د هیرویین زیاتې اندازې ته اړتیا پیدا کوي او یا یې باید د کارولو طریقه بدله کړي. دا د هېرو ینو یوه ډېره خطر ناکه او بده ځانگړتیا ده. ځینې خلک د اغېز د درجې د لوړولو اویا د چټک اغېز د ترلاسه کولو په خاطر هیرویین په رگ کې پیچکاري کوي. دا کار کېدای شي چې د وینې د زهري کېدو، د دانو د راختلو او پړسوب د رامنځته کېدو لامل شي. پردې سربېره د هیروییینو کارول ټولنیز او اقتصادي زیانونه، ډول ډول فزیکي او رواني ناروغۍ رامنځته کوي. دلته د یو څو ناروغیو نومونه اخلو:

د اېډز او ژېړي ناروغي، د زړه د ټکان لوړېدل، د وینې فشار لوړېدل، د سترگو کمزوري کېدل، د بدن د وزن ټیټېدل، د فزیکي وړتیا له منځه تلل، له خلکو گوښه کیدل، د حافظې کمزوري کېدل، د معدې کوچني کیدل، د بولي سیستم گډوډې، پر سخت نس ناستي اخته کیدل، د لتې او کمزورۍ احساس، له پزې او سترگو څخه د اوبو تلل، شهواني وړتیا له منځه تلل.

**اخځلیکونه:**

د درملو او نشه یي توکو په اړه اساسي معلومات، د نوي کور او نوي ژوند د لسمې کلیزې په ویاړ.
د نشه یي توکو په زیانونو پوهېدل، د چاپ کال ۱۳۸۸

## اتم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | پيژند پاڼه (خبرې اترې) | |
| د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د خبروکولو ورتيا به يې پياوړې شي.<br>– د پيژندپاڼې (تذکرې) پر ارزښت او اهميت به پوه شي.<br>– د اورېدلو مهارت به يې ښه شي.<br>– د خبرو کولوستونزې به يې لرې شي.<br>– د ليک او وينا ژبه به يې پياوړې شي.<br>– د لوست د پای فعاليتونه به په يوازې سره ځواب کړای شي. | |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ځا نگړې او ډله ييز درسي فعاليت | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | پيژندپاڼه (د تابعيت تذکره)، توره تخته، تباشير، تخته پاک | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | سوا ل او ځواب، څارنه او ليکلې ارزونه | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام او روغبړ، د حاضرۍ اخيستل، په ښلا ښلو ښو د کورنۍ دندې کتنه او سمول | ۴دقيقې |
| د انگېزې رامنځ ته کول | – ښوونکی زده‌کوونکوته پيژندپاڼه ښيي او پوښتي يې:<br>– دا کتابچه پيژنئ؟<br>– مورږ دې کتابچې ته څه اړتيا لرو او ولې يې اخلو؟ | ۶دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه | ۳۵دقيقې |
|---|---|---|
| –ښوونکی د پيژندپاڼې د ارزښت او اهميت په هکله خبرې کوي او زده‌کوونکو ته د هغې د کارونې او اړتيا په اړه بشپړ معلومات ورکوي. | – زده کوونکي د پيژندپاڼې پر ارزښت او د اړتيا او کارونې په ځايونو يې ځانونه پوهوي. | |
| –ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي، چې لوست د کتاب له مخې په کراره ولولي. | –زده‌کوونکي د کتاب له مخې لوست له ځانه سره لولي. | |
| –ښوونکی لوست په ځو زده‌کوونکو لولي او پخپله ورسره د نوو کلمو په معنا او کارولو کې مرسته کوي. | – ځو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د نورو زده‌کوونکو په وړاندې لولي. | |
| –وروسته دوه، دوه تنه زده‌کوونکي په وارسره پورته کوي او لارښوونه ورته کوي چې د پيژند پاڼې پــه هکلــه خبــرې وکړي. | – دوه، دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې ســره سم د ټولگي مخې ته راځي او د پيژندپاڼې په اړه لنډې خبرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکي څو زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته راغواړي او ورته وايي چې د تذکرې د کاروني د ځايونو او ارزښت په اړه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی په دربو ډلو کې دوه، دوه زده‌کوونکي د ټــولګی مخې ته راغواړي، چې د کتاب له لوست ســـم لـــومړی، دویمه او دریمه محاوره په وار سره تمثیل کړي.<br>– ښوونکی به وار سره یو، یو زده‌کوونکی د ټولګي مخې تـــه راغواړي او ورته وايي چې د خپل ځنګ ملګری نورو تـــه معرفي کړي.<br>– ښوونکی دوه، دوه زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي چې د کتاب د لوست له لارښوونې سره سم په خپل مـــنځ کې خبرې اترې وکړي.<br>– ښوونکی دې د وخت د موجودیت په صورت کې د لوست پاتې فعالیتونه پر زده‌کوونکو عملي کړي.<br>– ښوونکی د لوست لنډيز بيانوي او له څو زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي.<br>– ښوونکی په پای کې کورنۍ دنده ورکوي. | – څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره ســـم د ټولګي مخې ته راځي او د تذکرې د کاروني د ځايونو او ارزښت په اړه خبرې کوي.<br>– دوه، دوه زده‌کوونکي په دربو ډلو کې د ښوونکي لـــه لارښوونې سره سم د ټولګي مخــې تـــه راځـــي او د لوست لومړی، دويمه او دريمه محـــاوره پـــه خپلـــو منځونو کې عملي کوي.<br>– یو، یو زده‌کوونکی د خپـــل ځنـــګ زده‌کـــوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم نورو زده‌کوونکو تـــه ورپېژني.<br>– دوه، دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې ســـره سم د ټولګي مخې ته راځي او د لوست د بېلګې لـــه مخې په خپلو کې خبرې کوي.<br>– زده‌کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره ســـم د لوست د پای فعالیتونه سرته ورسوي.<br>– زده‌کوونکي د لوســـت لنـــډيز تـــه غـــوږ ږدي او د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>– زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې يـــې سرته رسوي. |

**اضافي معلومات:**

د هر هيواد اوسيدونکي د خپل ملي هويت د څرګندولو لپاره پېژندپاڼې لري، چې زموږ په ګران هېواد کـــې د تابعيـــت د تذکرې په نامه يادېږي. په پېژند پاڼه يا تذکره کې بشپړ هويت، يعنې نوم، د پلار نوم، د نيکه نوم، د زېږېدو نېټـــه، ځـــای، ولسوالي، ولايت او د استوګنې ځای ليکل کيږي. دغه راز په تذکره کې د شخص ځانګړي نښې نښانې، لکـــه: ونـــه، د سترګو رنګ، وروځې او په څيره کې ښکاره نښې نښانې ليکل کيږي. په پېژند پاڼه کې د هغې د صدور نېټه، ځای، کال،د ثبت شمېره، ټوک، د پاڼې شميره ليکل کيږي.سربيره پر دې پېژند پاڼه عمومي شمېره هم لري.

پېژندپاڼه د یوه شخص هويت او مليت څرګندوي. نوموړی شخص د هغه هيواد تبعه ګڼـــل کيـــږي او د هيـــواد د نـــورو اوسيدونکو په څير له ټولو مدني او شرعي حقونو څخه برخمن کيدای شي. د پېژندپاڼې لرونکی شخص د هيواد د اساســـي قانون د اصولو له مخې کولای شي چې په هيواد کې د نافذو قوانينو په رڼا کې رسمي او شخصي دند ې سرته ورسوي.

اوس په پرمختللو هيوادونو کې د کمپيوټري پرمختللو سيستمونو په وسيله داسې پېژنـــدپاڼې جـــوړوي، چـــې هـــيڅ ډول لاسوهنه پکې کېدای نشي.

زموږ په هيوادکې لاتراوسه پورې پېژند پاڼې کمپيوټري شوي نه دي، خو د کمپيوټري کولو لپاره يې هڅـــې روانـــې دي او کيدای شي چې ډير ژر زموږ پېژندپاڼې هم په پرمختللي سيستم سره جوړې شي او د پېژند پاڼو د ناوړه کاروني مخه ونيول شي.

# نهم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د پښتو نثر مخینه (تاریخچه) | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده‌کوونکي به دلوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړای شي .<br>– زده‌کوونکي به د پښتو نثر د مخینې په باره کې معلومات ترلاسه او د نثر ډولونه به وپېژني.<br>_ د پښتو نثر تاریخي ځانګړتیاوې به وپېژني.<br>– د پښتو نثر پر ودې او پراختیا به پوه شي.<br>– د پښتو نثر پر یوه ځانګړې دوره به څه وویلای او ولیکلای شي.<br>_ د یو شمېر لیکوالانو په اړه به معلومات پیدا کړي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د متن د وروستۍ برخې فعالیتونه په خپلواک ډول ځواب کړای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ځا نګړي او ډله ییز کارونه | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتابونه، پخواني نثرونه، توره تخته، تباشیراوتخته پاک | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي او تحریري ارزونه، سوا ل او ځواب او څارنیزه ارزونه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او روغبړ، د حاضرۍ اخیستل او د کورنۍ دندې کتل | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی کولای شي، په دې او دې ته ورته نورو پوښتنو سره د زده‌کوونکو پام لوست راواړوي:<br>د خلکو عادي خبرې په نظم وي که په نثر؟<br>نثر له نظم سره څه توپیر لري؟<br>نثر په ژبه کې ډېر کارېږي که نظم؟ | ٦ دقیقې |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | **د زده‌کوونکو فعالیتونه** | **۳۵دقیقې** |
| –ښوونکی د نوي لوست په پیل کې لومړی د نثر او نظم د معنا او بیا د پښتو د نثر او نظم د لرغونتوب او د مسجع او روان نثر په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>–ښوونکی د لرغوني دورې د مشهورو کتابونو نمونه زده‌کوونکو ته اخلي. | –زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي، د نظم او نثر پر معنا، د پښتو نظم او نثر پر لرغونتوب او د مسجع او روان نثر د مفهومونو په اړه ځانونه پوهوي.<br>–زده‌کوونکي د پښتو ادبیاتو د لرغوني دورې د نثر د کتابونو او د هغو د لیکوالو نومونه پېژني.<br>–زده‌کوونکي د پښتو نثر د ودې پر څرنګوالي ځانونه | |

| | |
|---|---|
| - ښوونکی په لنډ ډول د پښتو نثر پر ودې او پراختیا خبرې کوي او لازم معلومات وړاندې کوي.<br>- ښوونکي د پښتو نثر د لا ښې پېژندنې لپاره د پښتو لیکوالو نومونه او د نثر بېلګې وړاندې کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته سپارښتنه کوي چې په ټولګي کې د پښتو ژبې یوه جریده جوړه کړي. | پوهوي او لازم معلومات لاسته راوړي.<br>- زده‌کوونکي د پښتو نثر د لیکونکو نومونه پېژني او بېلګې یې ګوري.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي په مرسته او لارښوونه په ټولګي کې د یوې جریدې د جوړولو لپاره کار کوي، مسؤول چلوونکی او د کتنې پلاوی ورته ټاکي او د نوموړې جریدې یا خپرونې د خپرولو د مهال په اړه پریکړه کوي. |
| - ښوونکی ځو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي، چې د لوست یوه، یوه برخه د ټولګي په وړاندې ولولي.<br>- ښوونکی ځو زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې په خپله ژبه د پښتو نثر په اړه خبرې وکړي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي په ځو ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې هره ډله د پښتو نثر د یوې ځانګړې دورې ځانګړتیاوې ولیکي او د ډلې استازی دې یې نورو ټولګیوالو ته واوروي.<br>- ښوونکی په ټولګي کې د یوې په زړه پورې موضوع په اړه په ځو زده‌کوونکو دوه کسیزه مرکه کوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي او په بېلابېلو لارو زده‌کوونکي ارزوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې په کورونوکې د پښتو نثر د پرمختګ په اړه یوه مقاله ولیکي او د بلې ورځې په پښتو ساعت کې دې ټولګیوالو ته واوروي. | - ځو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د متن یوه یوه برخه د ټولګي په وړاندې لولي.<br>- ځو زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د پښتو نثر په اړوند خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم په ځو ډلو کې تنظیمېږي، د پښنو نثر پر یوې ټاکلې دورې خبرې کوي او د هرې ډلې استازی یې نورو ټولګیوالو ته اوروي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او ځو زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې دوه کسیزه مرکه کوي.<br>- زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او که اړتیا وه، پوښتنې کوي او ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې یې سرته رسوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

پټه خزانه:

پټه خزانه د پښتو ژبې د ادب له ډېرو مهمو او غوره کتابونو څخه شمېرل کېږي. دا کتاب د شاه حسین هوتک په هڅونه (۱۱۴۱ – ۱۱۴۲) هـ ق کلونو په اوږدو کې په کندهار کې محمد هوتک لیکلی دی. په پټه خزانه کې له دویمې هجري پېړۍ څخه تر (۱۱۰۰) هجري قمري کال پورې د پښتو ژبې د پنځوسو (۵۰) شاعرانو د حال شرحه او شعرونه پکې خوندي شوي دي.

محمد هوتک: محمد هوتک د داود هوتک زوی، د قادرخان هوتک لمسی دی. محمد هوتک د شاه حسین هوتک د دربار له مشهورو ادبي او فرهنګي کسانو څخه ګڼل کېږي او په مرغه کې اوسېده.

تاریخ مرصع: داشرف خان هجري د زوی افضل خان خټک اثر دی.

پیر روښان : د قاضي عبدالله زوی و، د پنجاب په جلندر نومي ځای کې زېږېدلی دی اوخیرالبیان یې ترټولو اثارو مهم ګڼل کیږي.

**اضافي معلومات:**

مخکې له دې چې د پښتو نثر په مخینه باندې وګړیږو، نو اړینه ده چې لومړی نثر وپیژنو. نثر څه شی دی؟

نثر د پوهانو په نظریوه عربي کلمه ده، په لغت کې شیندلو، تیتولو او خپرولو ته وایي او په اصطلاح کې هغه وینا یا مفهوم لرونکې لیکنه ده چې له وزن، قافیې او ردیف څخه ازاد وي. نثر د جوړښت له پلوه په څو ډوله دی.

مسجع نثر: هغه نثرته وایي چې د یوې جملې وروستۍ کلمه د بلې جملې یا د فقرې له وروستۍ کلمې سره هم قافیه وي. لکه: «مرګ به ورشي وسرې ته نا ګهانه، نشته د سرې په دنیا کې تل د تله مقام، ګوره ددغې زمانې ادمیان، غواړې دنیا او هر چې پکې دي مشغول دي ډیر ادمیان. ځیني په کرلو یا په بازارګانۍ یا په پوونده ګله یا... په نورو چارو مشغول کا ادمیان.»

د جملو په پای کې د ادمیان، ناګهان او بیا د ادمیان کلمې راغلي چې سجع لري، نوځکه مسجع نثر ورته وایي.

مؤجز نثر: هغه نثرته وایي چې دیوې جملې ډېرې کلمې د بلې جملې له ډېرو کلمو سره هم وزنه وي، خو هم قافیه نه وي، لکه: «یو ځان شرموي بل قام شرموي. ښه نوم دې د ځان، بد نوم دې د قام.»

مرسل نثر: هغه نثر ته وایي چې په کلمو او جملو کې یې د وزن او قافیې هیڅ قید نه وي یا هغه نثرته وایي چې کلمې یې د ورځنې ژوند خبرې اترې وي چې خلک یې په مطلب ژر پوه شي.

د پټې خزانې په حوا له د پښتو ژبې لومړنی نثري اثر "سالو وږمه" ګڼل کیږي. سالو وږمه د ابومحمد هاشم ابن زید سرواني اثر دی. نوموړی په (۲۲۳ هجري قمري) کې زیږیدلی دی. نوموړي سالو وږمه د دریمې هجري پیړۍ په شاوخوا کې لیکلې ده، خوله بده مرغه ددې کتاب په اړه اوس په واک کې څه شی نه لرو، یوازې نوم یې د نوروکتابونو په وسیله ترموږه رارسیدلی دی. په دریمه ادبي دوره کې موږ له ابومحمدهاشم ابن زید سرواني څخه وروسته د سلیمان ماکو په نامه یو بل پوخ نثر لیکونکی پیژنو. سلیمان ماکو د(۶۰۰هجري قمري) کلونو په شاوخو ا د کندهار په ارغستان کې ژوند کاوه. نوموړي یو کتاب لیکلی و چې نوم یې پرې تذکرة الاولیاء کیښود. په تذکرة اولیاء کې د پښتنو اولیاوو او عارفانو د ژوند پېښې او ویناوې راټولې کړې دي، خو له بده مرغه دا اثر هم په بشپړ ډول په واک کې نشته. یوازې د سرڅوپاڼې یې تر موږه رارسیدلې دي. دا کار په ادبي څیړنوکې له ستر ارزښت او اهمیت څخه برخمن دی. د سلیمان ماکو نثر د جوړښت له پلوه ساده، خو ډېر پیچلې ترکیبونه او سخت لغتونه، نه دي کارول شوي او جملې یې هم لنډې دي. لیکلی نثري اثر یې په لاس کې نه لرو، خو محمد هوتک د پټې خزانې لیکوال موږ ته د شیخ کټه د "لرغوني پښتانه"، د محمد بن علي بستي "د تاریخ سوري"،د ملایار د "تحفة الصالحین" او نورو نومونه اخلي. همدارنګه اخوند درویزه په تذکرة الابرار ولاشرار، شیخ میرداد خیل په تاریخ افاغنه، خوشحال خان خټک پخپلو اشعارو او جیمز ډارمسټیټر د پښتونخوا د شعرهارو بهارکې د "شیخ ملي دفتر" په نامه د یو لیکل شوي اثر یادونه کوي چې په نهمه هجري پیړۍ کې لیکل شوی دی. دا اثر او همدارنګه هغه نور اثار چې په پټه خزانه کې ترې یادونه شوې ده، تراوسه نه دي ترلاسه شوي، ځکه یې د نثر د څرنګوالي په اړه چوپه خوله پاتې کیږو. له لسمې هجري پیړۍ وروسته د پښتو ادب وده او پرمختیا په ښېلا ښېلو پړاوونو کې مطالعه کولای شو.

په لومړي پړاو کې بایزید په پښتو ادب کې د مسجع نثر د بنسټ ایښودونکي په توګه پیژنو. له پیروانو پرته یې مخالفین هم پر لاره تللي دي. په ځانګړې توګه مسجع نثر په پښتوکې عام شوی او پرمختګ یې کړی دی چې د مسجع نثر ترټولو ښې بېلګې د بایزید خیرالبیان او د اخون درویزه مخزن الاسلام ګڼلی شو.

ددې دورې په دويم پړاو کې د خوشحال خان خټک په مشرۍ دده د کورنی د ساده نثر ليکلي او يا ژباړلي اثار د يادولو وړ دي. دا کار د پښتو ادب د ودې او پراختيا په بهير کې ارزښتناک رول لري. د خوشحال خان "بياض" تر نثرونو سربيره چې ښېلګې يې"تاريخ مرصع" خوندي کړي، دستارنامه، د عبدالقادرخان خټک "ګلدسته د سعدي د ګلستان پښتو ژباړه، د ګوهرخان خټک ژباړلی قلب السير، د افضل خان خټک تاريخ مرصع اوکليله دمنه د عيار دانش پښتو ژباړه ددې دورې د نثر د يادولو وړکتابونه دي. د هوتکو د پېر د پښتو ادبياتو پرمختيا يوه زرينه دوره بلل کيږي. په دې دوره کې پښتو نثر چټک اوکوټلي ګامونه پورته کړي دي. د ملا نورمحمد غلجي اثر "نافع المسلمين" چې د مخزن الاسلام په سبک په مسجع نثر ليکل شوی او ددې ترڅنګ پټه خزانه د ساده او روان نثرغوره ښېلګې ګڼلی شو.

د لوی امپراتور، احمدشاه بابا د واکمنۍ او وروسته دده د کورنۍ د واکمنۍ پر مهال نثر ښه په زړه پورې پرمختيا مونـدلې ده. د عبدالله فتاوای احمدشاهي، د خان العلوم د احمدشاه بابا د اشعارو پښتو شرحه، د پيرمحمد کاکړ معرفة الا فغاني او نور ددې دورې نثري اثار د بيلګې په توګه يادولی شو. د پښتو د ادب د دويمې يا منځنۍ ادبي دورې د دريم پړاو په وروستيو کې د نوي ادب د ايجاد لارې چارې برابرې شوې دي. د دې دورې ليکوالو او شاعرانو ساده ولسي محاورې ته نژدې لاره خپله کړې ده او د پخواني مسجع نثر پرخلاف يې عام فهمه او کليوالي اولسي اصطلاحات، محاورې او متلونه هم پخپلو نثري ليکنوکې کارولي او هڅه يې کړې، داسې اثار وليکي چې هغه د خلکو د پوهاوي وړ او د خلکو په ژبه وي. ددې ډول اثارو په ډله کې د ښېلګې په توګه د نورمحمد نوري افغاني "غنچه روه" د مولوي احمد ګنج پښتو، ادم خان او درخانۍ د ميراحمدشاه رضواني "شکرستان افغاني" او "بهارستان افغاني" د مياحسيب ګل کاکا خيل ژباړلی ناول "نقش نګين" او د ميامحمد ژباړلی ناول "توبة النصوح" ددې پړاو د غوره نثرونو بيلګې دي. په اوسنۍ معاصره دوره کې پښتو پراختيا موندلې د ساده او ژورناليستيکي نثرونو ترڅنګ نوي هنري ادبي ژانرونه هم په پښتو ژبه او ادب کې دود شوي چې ترننه پورې يې د ودې او پرمختيا يون په چټکی سره روان دی.

**اخځليکونه:**

د نثري ادب ډولونه (ژانرونه)، ليکوال څېړنوال سيدمحی الدين هاشمي

د پښتو ادبياتو تاريخ، لرغوني اومنځنۍ دوره. لومړی ټوک، دويم چاپ. ليکوال سرمحقق زلمی هېواد مل

## لسم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطالبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | شعر | | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړای شي:<br>_ زده‌کوونکي به د شعر په معنا او مفهوم وپوهیږي.<br>– د شعر په لوست کې به له بېلابېلو تعریفونو سره بلد شي .<br>– د شعر په هکله به خپل نظر وویلای شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست وروستي فعالیتونه به په خپلواک ډول ترسره کړای شي. | | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل او انفرادي او ډله ییز فعالیت | | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | تخته، تباشیر، کتاب او د شعرونو کومه ټولګه | | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفا هي، تحریري اود یادداشت کتابچه | | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتل د تیر لوست ارزونه، د تیر او نوي لوست ترمنځ تړاو | | ۴دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی د لوست له پیل څخه مخکې لاندې پوښتنې کوي:<br>_ هغه کلام چې د اوریدونکي احساسات راوپاروي په څه نوم یادیږي؟<br>– د شعر او نثر ترمنځ توپیرڅه شی دی؟ | | ٦دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵دقیقې |
| – ښوونکی د شعر په اړه زده‌کوونکو ته هر اړخیز معلومات ورکوي، د نثر او نظم پر مفهوم یې پوهوي او له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي، که د چا کوم پښتو شعر یا لنډۍ زده وي، په وار دې نورو ټولګیوالو ته ووایي.<br>– ښوونکی د تخلیقي او تحقیقي ادب په اړه زده‌کوونکو ته معلومات وړاندې کوي. د تخلیقي او تحقیقي ادب بېلګې ورته وایي.<br><br>– ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې په وار سره د کتاب له مخې لوست ولولي.<br>– ښوونکی له زده‌کوونکو سره په کتاب کې د شعرونو د راغلو دوو بېلګو په لوستلو او د مفهوم په اخیستلو کې مرسته کوي. بیا څو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوموړي شعرونه د نورو ټولګیوالو په | | – زده‌کوونکي د نثر اونظم په توپیر ځانونه پوهوي، شعر پېژني او د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي. که کوم شعر یا لنډۍ یې زده وي، د نورو هم ټولګیوالو په وړاندې یې وایي.<br>– زده‌کوونکو ځانونه پوهوي چې تخلیقي او تحقیقي ادب څه ته وایي، د هر یوه بېلګې پیدا کوي او له ښوونکي سره پرې خبرې کوي.<br>– څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د کتاب له مخې لوست لولي.<br><br>– زده‌کوونکي په کتاب کې د دوو شعرونو بېلګې لولي او پر مفهوم یې ځانونه پوهوي. وروسته څو زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم هغه د ټولګیوالو په وړاندې لولي. | |

| | |
|---|---|
| وړاندې په سم ډول ولولي.<br>– ښوونکی یو، دوه زده‌کوونکي راغواړي او د نومړو شعرونو یو، یو بیت ورته وايي چې په نثر يې واړوي. | – څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم يو يه دوه بيتونه په نثر اړوي.<br>– زده‌کوونکي د خپلې خپرونې لپاره، چې نوې يي جوړه کړې، دوه، درې شعرونه پيدا کوي. |
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته د ملنګ جان او د هغه د حماسي شعرونو او هېوادنۍ مينې په اړوند معلومات وړاندې کوي. | – زده‌کوونکي د ولسي شاعر ملنګ پر ژوند ځانونه پوهوي او له هېواد، حق او حقيقت سره د هغه د مينې او ژور احساس په اړه معلومات پيدا کوي. |
| – ښوونکی دې څو زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي چې دوه، دوه زده‌کوونکي په خپلو کې مرکه وکړي. | – څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او دوه، دوه تنه په خپلو کې مرکه کوي. |
| – ښوونکي لوست په لنډيز سره زده‌کوونکو ته تکراروي او په څو پوښتنو يې ارزونه کوي. | – زده‌کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی د هرې ورځې له لوست سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | – زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې يې سرته رسوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

هنر: د غږونو، کلمو، شکلونو، حرکاتو يا نورو عناصرو داسې شعوري توليد او منطقي ترتيب ته وايي چې د اوريدونکو اويا لوستونکو احساسات راوپاروي .

ادب: په الفاظو او کلموکې د يو ولس د افکارو او غوښتنو عالي افاده ده چې د ودې ارګانيک دوام يې مهم خصوصيت ګڼل کيږي .

**اضافي معلومات:**

په ټوليز ډول کلا م يا خبرې کول په دوه ډوله ويشل کيږي: يوه ته يې نثر او بل ته يې نظم وايي. نظم وزن او قافيه لري او نثر يې نه لري. شعر د هغو لطيفو او نازکو احساساتو او تخيلاتو زيږنده ده چې د موزونو او رنګينو الفاظو په جامه کې راوړل شوي وي. د ځينو پوهانو په نظر شعر عربي کلمه ده، هغې سنجول شوې ادبي وينا ته ويل کيږي چې د ويونکي د عواطفو او خيالاتو ښکارندوی وي. شعر په هره ژبه کې د رمز، اشارې، کنايې، تخيل او سمبول ښکلی، هنري، عاطفي، غير معمولي انځوريزکلام دی. شعر هغه خزانه ده چې د خوندورو کلمو او هنري ارزښت په چوکاټ کې راګير شوی وي او بشپړه معنا يې يوازې د شاعر په زړه کې وي.

***

ملنګ جان په (۱۲۹۳لمريز) کال د ننګرهار ولايت د بهسودو په چميار کلي کې د ملک عبدالشکور په کورکې زيږېدلی، کورنی نوم يې محمد امين و. وروسته بيا امين جان شو. د ژوند دربم پسرلی يې لانه و بشپړکړی چې پلار يې له نړۍ څخه سترګې پټې کړې. اروابښاد ملنګ جان د ننګرهار د اوسنيو شاعرانو په ډله کې يو وتلی ولسي شاعر دی، په پنځلس کلنۍ يې کې د شعر په ويلو پيل کړی. همېشه يې د ملي سندرو په ويلوسره شعر او شاعری توده ساتلې وه. که څه هم ملنګ جان نالوستی و په اشعارو کې يې داسې کيفيت پروت دی چې ويو نکي ته دخپل ذوق او احساس په کچه ښه ښه خوندونه وربښي. ملنګ جان د شعر په ټولو ډولونو کې ښه برلاسي درلوده. له بده مرغه مرګي دغه خوږ ژبی او ولسي شاعر پر پښتني او افغاني ټولنې ونه لوراوه او په (۱۳۳٦لمريز) کال د کابل – جلال اباد په لويه لاره، په لته بند کې د يوې ترافيکي پيښې له امله له خپل کوچني زوی، دواجان سره يوځای له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې. د اشعارو يو ښکلی ديوان لري چې خوږې نغمې نوميږي.

## یوولسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع | دپښتو ادبیاتو دویمه تاریخي دوره | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– زده‌کوونکي به د پښتو ادبیاتو د تاریخي دورو په لړ کې دویمه تاریخي دوره به وپېژني او د هغې په اړه به معلومات پیدا کړي.<br>– ددغې دورې د اثارو پر ځا نګړتیاوو به پوه شي او شاعران او لیکوال به یې وپېژني.<br>– د پښتو ادبیاتو د دویمې یا منځنۍ دورې بېلا بېل مهم پړاوونه به وپېژني.<br>– د پښتو ادبیاتو پر پرمختیایي بهیر به پوه شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای برخې فعالیتونه به په خپلواک ډول ځواب کړای شي. | |
| د تدریس لارې چارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ځا نګړي او ډله ییز کارونه | |
| د تدریس وسیلې اومرستندوي توکي | درسي کتابونه، پخواني دیوانونه، توره تخته، تباشیر او تخته پاک | |
| د ارزونې لارې وسیلې | شفاهي ارزونه، سوال او ځواب، څارنیزه ارزونه او لیکنۍ ارزونه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورنۍ دندې کتل. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې د رامنځته کول | زده‌کوونکو ته د ادبي تاریخي دورو د وېش په څرنګوالي او په دې اړوند د یو، دوه پوښتنو له لارې د زده‌کوونکو پام نوي لوست ته اړول کیږي. | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکي له څو زده‌کوونکو غواړي چې د ادبیاتو د تاریخي دورې په اړه خپل معلومات له نورو سره شریک کړي.<br>– ښوونکی زده‌کوونکو ته وایي چې ولې د یو شمېر افغاني لیکوالو اثار زموږ په لاس کې نشته او یوازې نومونه یې راپاتې دي.<br>– ښوونکی د پښتو ادبیاتو د منځنۍ دورې څلور مهم پړاوونه، ددې دورې لیکوال، د هغوی اثار، د هغوی د | – درې تنه زده‌کوونکي د ښوونکي په مرسته خپل نظر وړاندې کوي.<br>– زده‌کوونکي ښوونکي ته غوږ نیسي او د پردېو یرغلونو، د افغانانو خپلمنځي جګړو او بې پروایۍ په څېر نور لاملونه پېژني چې د زیاترو لیکلو ادبیاتو د له منځه تګ لامل شوي دي.<br>– زده‌کوونکي د پښتو ادبیاتو په دویمه دوره کې څلور مهم پړاوونه، د هر پړاو ځانګړتیاوې، شاعران او لیکوال او د هغوی اثار او لیکنې پېژني اوځانونه پرې | |

اثارو د محتوا ترمنځ توپیر او د شعر او لیکوالۍ پرمختیایي بهیر زده‌کوونکو ته تشریح کوي.

- ښوونکی د پښتو نثر څرنګوالی (مسجع او روان نثرونه) او په دویمه دوره کې د هغې د ودې په څرنګوالي زده‌کوونکي پوهوي.
- ښوونکی په دویمه دوره کې پښتو شعر او نثر ته د خوشحال خټک او د هغه دکورنۍ پر خدمتونو اوهمدارنګه د هوتکیانو په دربار کې د پښتو ژبې په ودې رڼا اچوي او له بېلګو سره يې روښانوي.
- ښوونکی د ادبي تاریخي دورو د وېش او یو له بل څخه د جلاکېدو په څرنګوالي زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.
- ښوونکی نوی لوست په وار پر زده‌کوونکو لولي او پخپله ځای ځای د راغلو موضوعګانو په اړه معلومات وړاندې کوي.
- ښوونکی په لنډ ډول د پښتو ادبیاتو په دویمې تاریخي دورې، لیکوالو، شاعرانو او د هغوی په اثارو خبرې کوي او لوست رانغاړي.
- ښوونکی دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او ورته وايي چې په وار سره د پښتو ادبي تاریخي دورو په اړه لنډې خبرې وکړي.
- ښوونکی زده‌کوونکي پر څلورو ډلو ويشي. هرې ډلې ته دنده ورکوي، چې په ترتیب سره د دویمې دورې له څلورو پړاوونو څخه په یو پړاو بحث وکړي، د هر پړاو ځانګړتیا وڅېړي، لیکوال او شاعران يې په ګوته کړي، د لیکلو اثارو نومونه يې واخلي او بیا دې د هرې ډلې استازی د نورو په وړاندې ولولي.
- ښوونکی دې دوه، درې زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوبولي چې د خپلې خوښې پر يوې موضوع د پخوا په څېر یو، دوه دقيقې خبرې وکړي.
- ښوونکی دې یو زده‌کوونکی راوغواړي چې د پټې خزانې د ارزښت په اړه معلومات وړاندې کړي.

پوهوي.

- زده‌کوونکي په پښتو نثر کې مسجع نثر او په هغه پېر کې د هغې اړتیا پېژني او د پښتو ادبیاتو پر ودې ځانونه پوهوي.
- زده‌کوونکي پښتو ادبیاتو ته د خوشحال خټک او د هغه د کورنۍ د ستاینې وړ خدمتونه پېژني او د هوتکیانو په دربار کې د پښتو ژبې د ودې په اړه معلومات پیدا کوي او پټه خزانه او د هغې ارزښت پېژني.
- زده‌کوونکي ځانونه پوهوي چې یوه تاریخي ادبي دوره له بلې هغې څنګه بېلیږي.
- زده‌کوونکي په وار لوست لولي او د اړتیا په صورت کې پوښتنې کوي.
- زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ ږدي او د دویمې ادبي دورې د ځانګړتیاوو، شاعرانو، لیکوالو او د هغوی د اثارو په اړه خپل معلومات بشپړوي او ډاډه تر لاسه کوي چې د لوست په مفهوم پوه شوي دي.
- دوه زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښـــوونه د ټولګي مخې ته راځي او د ادبي تاریخي دورو په اړه لنډې خبرې کوي.
- زده کووني دښوونکي له لارښوونې سره سم ځانونه په ډلوکې تنظیموي. د هر پړاو پر ځانګړتیاوو خبرې کوي، د لیکوالو اوشاعرانو نومونه لیکي او بیا دې د هرې ډلې استازی د نورو په نماینده ګۍ د ټولګي په وړاندې بیان کړي. ټول زده‌کوونکي دې په بحث کې برخه واخلي.
- دوه، دوه زده‌کوونکي دې د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې خوښې په یوې موضوع دې لنډې خبرې وکړي.
- یو زده‌کوونکی د ښوونکي له لارښوونې سره سم د پټې خزانې په ارزښت خبرې کوي.
- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم په فعال ډول د لوست د پای فعالیتونو په ځوابولو کې ونډه

| | |
|---|---|
| - ښوونکی دې د لوست د پای فعالیتونه په وار پر زده کوونکو عملي کړي او پخپله دې د اړتیا په وخت کې لارښوونه اومرسته وکړي. ښوونکی دې زده‌کوونکو ته په لومړیو دوو ساعتونو کې له لوست وروسته پخپله خوښه او په دریم ساعت کې د لوست د پای کورنۍ دنده ورکړي. | اخلي. زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې یې لیکي. هڅه دې وکړي چې لیکنه یې ښه، روانه او په زړه پورې وي. توپیر نه کوي که لنډه هم وي، خو باید منطقي تړاو ولري او مفهوم څرګند کړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**بایزید روښا ن د** عبدالله زوی و. د مغلو په وړاندې یې مبارزه کړې. د خیرالبیان د کتاب لیکوال دی. قلمي نسخه یې د جرمني د تیوبینګن په کتابتون کې خوندي ده.

**ارزاني:** د پیرروښان مرید و. د برهان زوی دی. د شعر دیوان لري. په فارسي او هندي ژبه هم شعرونه لري. اخوند درویزه په تذکرة الابرار نومې کتاب کې د ارزاني یادونه کړې ده.

**علي محمد مخلص:** د میرزاخان انصاري ملګری و. د بایزید روښان نیمګړې حال نامه یې پوره کړې ده. تر روښان وروسته یې د هغه د کورنۍ احوال ورزیات کړی. په ۱۰۲۹هـ ق کال کې هند ته تللی او د هند په رشیداباد کې استوګن شوی و.

**اخوند درویزه:** د اخوندګدا زوی و. د زر (۱۰۰۰) هجري په شاوخوا کې یې ژوند کاوه. قبر یې د پیښور په هزارخانۍ کې دی. د پیر روښان د عقیدې مخالف و. روانه شاعري یې کړې او د مخزن الاسلام د کتاب لیکوال دی.

**مسجع نثر:** سجع یا قافیه لرونکی نثر دی، چې وروستۍ کلمې یې د قافیو په ډول کارول شوې وي.

**قطعه:** مطلع اومقطع نه لري. کله چې د کوم شعر د سر او پای مسره ولویږي، نو بیا قطعه ورته وایي.

**مربع:** دوه بیتیز وي. په سرکې څلور بیته یو ډول قافیه لري. بیا وروسته درې بیته یو ډول قا فیه لري. وروستی نیم بیتی یې د لومړنیو څلورو بیتوپه څیر قافیه لري.

مخمس :د مخمس هر بند پنځه بیته لري. د لومړیو پنځوبیتونوقافیه یې یو ډول وي. بیا وروسته د څلورو بیتونو قافیه یې یو ډول وي او د پنځم بیت قافیه د لومړي بند په څیروي.

نورنامه : داخوند میا داد اثر دی .

**یارمحمد هوتک** د کندهار له علماوو څخه و، په منطق او فقه کې یې شهرت درلود. د شاه حسین هوتک استاد و.

**فواید الشریعت:** د ا خوندقاسم پاپینې اثر دی. د اخوند درویزه پیرو و. د مخزن په سبک د فقهي مسایل پکې راغلي دي.

**واصل روښاني:** د روښاني لړۍ یو نومیالی شاعر دی. د شعر دیوان لري. ژوند یې تر ۱۰۵۸هـ ق پورې یقیني دی.

**خواجه محمد:** په قوم بنګښ او د خوشحال خان د وخت شاعر او قصیده ویونکی دی.

**کریمداد بنګښ:** د پښتو دیوان لرونکی شاعر دی. په پښتو او فارسي ژبو یې شعرونه ویلي دي. د هند په فرخ اباد کې اوسیدلی او ژوند یې تر ۱۰۵٦هق پورې باوري دی.

**دولت لواني:** نوم یې دولت الله لوانی او په دولت لواني مشهور دی. شاعر او د دیوان لرونکی دی. ژوند یې د ۱۰۰۰هـ په شاوخوا کې اټکل شوی دی.

**قادر داد:** د محمد زمان زوی، د پیرداد لمسی، د کمال الدین کړوسی او د پیر روښان کودی دی. شاعر دی او قصیدې لري.

**اضافي معلوما ت:**

دمخه ټولو ليکل شوو اثارو ته ادبيات ويل کيدل، خو د وخت په تيريدو او له ځيړنو وروسته د اثارو او ليکنو لپاره ځانګې جلا شوې. يوازې هغه اثار د ادبياتو تر چوکاټ لاندې راغلل، چې پکې هنري ارزښتونه موجود وي او تخيل او عواطفو ته پکې ځای ورکړل شوی وي. ادبيات پر يو ځانګړي خط روان نه وي. د ټولنې بيلابيل عوامل وربانديې اغيزکوي او د هغو عواملو تر اغيز لاندې پکې بدلون راځي. له دې امله د هر هيواد ادبيات په دورو ويشل کيږي. او هره دوره ځانګړې خصوصيات لري.

له دې امله ويلای شو چې د يوې دورې ادبي اثار له بلې سره توپير لري او يوه له بلې څخه اغيزمنه وي. په دې معنا چې يوه له بلې څخه را زيږي. په يوه دوره کې د بلې لپاره شرايط را منځته کيږي او په هره نوې دوره کې نوې ځانګړنې وي او د تيرې دورې ځانګړنې تر ډيره هم پکې روانې وي.

دمخه مو وويل چې ادبي دورې په هر هيواد کې په جلا ډول ډلبندي کيږي. د بيلګې په ډول په ځينو هيوادونوکې د شاهانو د کورنيو، په ځينو کې د تاريخونو او په ځينوکې د تاريخي پيښو له مخې جلا کيږي. له دې امله دهر هيواد ادبي تاريخ په دورو ويشل کيږي اوهره دوره ځانګړې خصوصيات لري.

د ادبي تاريخ په څيړلو کې يو څيړونکی مجبوريږي تاريخي پيښو ته ورننوزي او د هغوی دننه د ادب دورې وټاکي. دا کار ستره ستونزه بللای شو، ځکه د څيړونکو نظريو له بله توپير لري او هرڅوک يې په خپله خوښه ټاکي. دا کار بايد ونشي او څيړونکي په دې کې شخصي ذوق داخل نه کړي.

اروانښاد محمد صديق روهي ليکي، ادبي تاريخ د ادبي جريانونو تاريخ دی. کله چې يو ادبي مکتب خپل ځای بل ته خوشي کوي، د ادب تاريخ بله دوره پيليږي. ادبي مکتبونه له ټولنيزو، اقتصادي او سياسي پيښو سره اړه پيدا کوي. کله ناکله ادبي دورې د تاريخ د سترو پيښو او د پاچاهانو د کورنيو له مخې جلا شوي وي.

محمد صديق روهي په دې هکله (د پښتوادبياتوتاريخ) په نامه کتاب کې اشاره کوي، وايي: که چيرې د شاهانو د کورنيو په اساس دورې وويشل شي، نو د ادبي سبکونو يا ژانرونو له تحليل سره مرسته نشي کولای. ځکه دا د کوم پاچا په امر او حکم منځته راتلای نشي. دغه راز مونږ ادبي دورې د تاريخونو په اساس هم نه شو ټاکلی، ځکه تاريخونه ثابت وي، حال دا چې پر ادبي خواوو د نوو اغيزو رامنځته کېدل مجرد او ثابت نه وي او يو دم د خرميږي په څير سر نه راپورته کوي.

که چېرې دادبي تاريخ دورې د سياسي، ا قتصادي او اجتماعي دورو په اساس وويشل شي، ديوې ادبي دورې دننه نور زيات ادبي جريانونه رامنځته کيږي. د مثال په توګه د پانګوالۍ په دوره کې زيات ادبي مکتبونه راپيدا شوي دي، نو د يوې تاريخې دورې تر سرليک لاندې ټول ادبي جريانونه مطالعه کولای شو.

مونږ په پښتو ژبه کې هم دورې په بيلا بيلو برخو ويشل شوي دي:

پوهاند حبيبي د پښتو ادب دورې په څلور برخو ويشلي دي:

لومړۍ دوره يې تر اسلام دمخه بللي ده. دويمه يې د اسلام له پيل څخه تر ۱۰۰۰ هـ پورې، دريمه يې له ۱۰۰۰ څخه تر ۱۳۰۰ هـ ق پورې او څلور مه يې له ۱۳۰۰ هـ ق راوروسته.

پوهاند رښتين لومړۍ دوره له ۱۰۰ څخه تر ۸۰۰ پورې، دويمه يې له ۹۰۰ هـ ق څخه تر ۱۱۰۰ هـ ق پورې، دريمه يې له ۱۱۰۰ – ۱۲۵۰ هـ پورې څلورمه يې له ۱۲۰۰ څخه تر ۱۳۵۰ هـ پورې بللې ده.

د روهي صاحب په اند هره دوره پراوونه لري. يوه دوره لا پای ته رسيدلې نه وي، چې سبکونه او ژانرونه او نور ادبي جريانونه پکې رامنځته کيږي.

پر ځلورو دورو د ادبي تاریخ ویشل:
**لرغونی دوره:** په هغې کې قبیلوي نظام دی. له امیر کروړ نه د بایزید روښان تر منځنه راتګ پورې. په ۱٦ پیړی کې د هغه وخت د مغولي سلطنت په زمانه کې په ادبیاتو کې بدلون راغی. د لمانځنو، ویاړنو او ویروونو موضوعات رامنځته شول. منځنۍ دوره له ۱٦ میلادي پیړۍ څخه تر شلمې پیړۍ پوري رسیږي. په دې دوره کې سیاسي او ایدیولوژیکي مبارزه پیل کیږي. میا روښان رامنځته کیږي، د خټکو مبارزې پیلیږي. خوشحال خټک پښتو ادبیات د مضمون، شکل او قالب له مخې غني کړل، لکه مثنوي، غزل، قصیده، رباعي او مخمس په ادبي اثاروکې زیات شول. د منځنۍ دورې ادبیاتو له پخوانیو دورو سره د شکل او مضمون له مخې توپیر پیداکړ. معنوي صنایع او تخیلات رامنځته شول. د حمید او کاظم شیدا په څیر نازکخیال شاعران په کې راښکاره شول. په منځنۍ دوره کې درې پړاوونه، فکري، سیاسي او هنري رامنځته شول. فکري د بایزید روښان، سیاسي د خوشحال خان او هنري د رحمان بابا، حمید مومند او حنان بارکزی او نور.
**اوسنۍ دوره** د شملی پیړۍ له دویمې لسیزی څخه پیلیږي. دا دوره یو خپل انکشاف نه کوي. په دې دوره کې هم یو شمېر پړاوونه رامنځته کیږي. د روانې، ویښتیا او اوښتون پړاوونه او څلورم د سمون پړاو بللی شو. د مضمون او محتوا له مخې په اوسنۍ دوره کې نوي فکري او سیاسي تمایلات او نور هنري متودونه، نوي ادبي ژانرونه، لکه: ناول، لنډه کیسه، نوی شعر، طنز او داسې نور رامنځته کیږي.
د شملي پیړی په لړ کې د روښانتیا په پړاو کې چې شرایط برابر شول، فابریکې جوړې شوې او په فرهنګ کې بدلونونه رامنځته شول، ښوونځي جوړ شول او ښځینه ښوونکې استخدام شوې (افغانستان در مسیر تاریخ)
د روښانتیا پړاو: ادبي جریان له خپل پخواني چوکاټ څخه ووت. پوره رسالت یې په غاړه واخیست. ادبیات د زیار او زحمت د روښانولو لپاره وکارول شول، ولس ویښ شو او د استبداد پر خلاف مبارزه پیل شوه.
پدې پړاو کې د افغانستان دعلومو او تکنالوژی خواته مخه شوه او ملي وحدت را ټینګ شو. پدې دوره کې عیني او ذهني شرایط برابرشول. فابریکې جوړې شوې او د ژوندانه د اړتیاوو د پوره کولولپاره د تولیداتو د رامنځته کولو په برخه کې ګامونه پورته شول، لکه: مطبعه، روغتون، موټرونه، فوتوګرافي ماشینونه، سړکونه، فابریکې، ودانۍ،پلونه، ویالې اوداسې نور. دا هرڅه د عصري ژوندانه نـــښې دي، په ژوندانه کې په بدلون سره په ادبي خواووکې هم بدلون رامنځته شو. ادبیا ت د ملي ارمانونو د سرته رسیدو لپاره را وځلیدل. ادبي جریانونه له خپل ادبي دودیز ارزښت نه ووتل، معاصر ادب رسالتمن او ژمن شو. په هیواد کې د نیمګړتیاوو د له منځه وړلو لپاره روښانفکران رامنځته او مبارزه یې پیل شوه. د سراج الاخبار په جریده کې لیکنې پیل شوې. په همدې وخت کې په لره او بره پښتونخوا کې په پښتو ادب کې نوي ژانرونه پیل شول. په کوزه پښتونخوا کې راحت زاخیلي، عبدالاکبر اکبر او نور او دلته په بره پـــښتونخوا کې محمود طرزي، مولوي صالح محمد کندهاری په څیر لیکوال رامنځته شول، ددغه وخت د ادبیاتو سوژه هیواد پالنه، خپلواکي غوښتنه، د فساد رټل، علومو او تکنالوژي ته مخه، د ملي وحدت ټینګول او عصري ژوند ته مخه کول، د استثمار پرخلاف حرکت او نور وو. د روښانتیا د پړاو مهم لیکوال مولوي صا لح محمد کندهاري. (په کندهار کې زیږیدلی په کندهار کې د پښتو ژبې استادو او د اثارو لیکوال دی) غلام محی الدین افغان (د عبدالرشید زوی په کندهار کې زیږیدلی دی)، عبدالعلي مستعني او نور دي. مستعني د ملا رمضان زوی دی، په ختېه هوتک دی، کورنۍ یې له کندهار نه وردګو ته راغلي وه او په وردګ هم مشهور دی. په پـــښتو یې شعرونه ویلي دي.

**اخځلیک:**
_ کاندید اکادمیسن سرمحقق محمد صدیق، روهي. د پښتو ادبیاتو تاریخ، معاصره دوره.

## دولسم لوست

## د تدريس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د نا روغ پوښتنه (خبرې اترې) | |
| **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– زده‌کوونکي به د ناروغتيا لاملونه وپيژني.<br>– د خپل مسلمان ناروغ ورور د پوښتنې په ارزښت به پوه شي.<br>– له ناروغۍ څخه د وقايې لارې چارې به زده کړي.<br>– نوې کلمې او د نوو جملو د جوړولو چل به زده کړي.<br>– د ليک او وينا ژبه به يې پياوړې شي.<br>– په يوازې توګه به دلوست د پای فعاليتونه سرته ورسولای شي. | |
| **د تدريس لارې** | مرکه، لوستل، ليکل،اوريدل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز کار او يوکسيزکار | |
| **د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي** | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک اوتبا شير | |
| **د ارزونې لارې او وسيلې** | شفاهي، عملي، څارنه اود ښوونکي د يادداشت کتابچه | |
| **د زده کړې او تدريس فعاليتونه** | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د ټولګي تنظيم او د کورنۍ دندې کتل، | ۴دقيقې |
| **د انګېزې رامنځته کول** | له يو څو زده‌کوونکو څخه د تير لوست په پوښتنې د ناروغۍ د زيان او د هغې د پيداکېدو د لاملونو په اړه له زده‌کوونکو سره د خبرو اترو له لارې دې په نوي لوست پيل وشي. | ٦دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه | ۳۵دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې د تدريس له لومړيو فعاليتونوڅخه وروسته د زده‌کوونکو په مرسته د هغو لاملونو په اړه خبرې وکړي چې په چاپيريال کې ترې ناروغۍ پيدا کيږي.<br>– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وپوښتي چې د چاپيريال او همدارنګه له موسمي ناروغيو څخه څنګه ځانونه ساتلای شو.<br>– ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه د روغتيا د ګټو په اړه پوښتنې وکړي. | – زده‌کوونک دې د لوست په لومړيو فعاليتونو کې له ونډې اخيستنې وروسته په وار هغه لاملونه په ګوته کړي چې په چاپيريال کې ترې ناروغي پيدا کېږي.<br>– زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي او هغه لارې چارې په ګوته کوي چې له موسمي ناروغيو او له چاپيريال څخه د راولاړو شوو ناروغيو څخه پرې ځانونه ژغورل کېدای شي.<br>– زده‌کوونکي د ناروغانو په اړه اسلامي لارښوونې څرګندوي او په خبرو اترو کې ونډه اخلي.<br>– زده‌کوونکي د روغتيا په اړوند لوست له ځانونو سره | |

- ښوونکی دې د اسلامي لارښوونو پــه رڼــا کــې د ناروغانو د پوښتنو په اړه د زده‌کوونکــو معلومــات وازمايي او بشپړ دې کړي.
- ښوونکی دې زده‌کوونکو ته وخت ورکــړي چــې د روغتيا لوست له ځانونو سره ولولي او له هغه وروسته مرکو ته چمتووالی ونيسي.

- ښوونکی دې په وار سره دوه، دوه زده‌کــوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي او د کتاب د متن له مخــې دې دوه په دوه خبرې اترې وکړي. ښــوونکی دې دا مرکه د امکان تر بريده په زيات شــمېر زده‌کوونکــو سرته ورسوي او پخپله دې پکې زياته مداخله نه کوي.

- ښوونکی دې زده‌کوونکو ته دنده ورکړي چــې يــو زده‌کوونکی ځــان نــاروغ واچــوي او نــور ټــو زده‌کوونکي به په وار د هغه پوښتنې ته راشي او خبرې اترې ورسره وکړي.
- ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړي چــې که څوک د کوم ناروغ ملګري يا خپلوان پوښتنې تــه ورغلی وي، خپله کيسه دې نورو ته وکړي.
- ښوونکی دې د لوست په اړه لنډه رڼا واچوي او د ټو پوښتنو له لارې دې زده‌کوونکي وارزوي.
- ښوونکي دې د دري ژبې يو کوچنی په زړه پورې متن زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکړي چــې په پښتو يې وژباړي.

لولي، که پوښتنه يې درلوده له ښوونکي څخه دې وکړي او مرکو ته دې چمتووالی ونيسي.
- دوه، دوه زده‌کوونکي د ښوونکی له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته ځي او په خپلو کې مرکه اوخبرې اترې کوي. توپير نه کوي که مرکه يې ټکي په ټکي د کتاب له لوست سره يوشان نه وي.
- د تمثيل په توګه دې يو زده‌کوونکی ځان ناروغه واچوي او ټو زده‌کوونکي دې د پوښتنې لپاره ورشي. له ناروغ څخه دې پوښتنې وکړي او نــاروغ زده‌کــوونکی دې د ناروغۍ د لامل په هکله ځوابونه ورکړي دا پوښتنه دې د سوال او ځواب په توګه سرته ورســوي. ښــوونکي دې خبرې اترې وڅاري، که اړتيا وه مرسته او لارښوونه دې وکړي.

- زده‌کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او د ښــوونکي پوښتنې ځوابوي.

- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې ســره ســم مــتن ليکي،کورونو کې يې د بل چا له مرستې پرته پــه پښــتو اړوي او په بله ورځ يې په ټولګی کې پخپل وار لــولي او سمونونه پکې راوړي.

**اضافي معلومات:**

هر انسان بايد د ځان، د خپلې کورنۍ او په پای کې د خپلې ټولنې د خلکو د روغتيا پام وساتي. د وقايي او روغتيا ســاتنط لارې چارې زده او د خلکو غوږونو ته ورسوي، تر څو پر ناروغيو د اخته کېدو کچه راټيټه شي. له هغې سره سره بيا هم يو شمېر ناروغۍ رامنځته کيږي، چې پخپل وخت او مهال يې درملنه وشي.که يو څوک ناروغه شي، زيان ړرته ورســيږي او يا غم پرې راشي، ، نو پر دوستانو او خپلوانو باندې لازمه ده چې پوښتنه يې وکړي. په پوښتنه کې اســلامي ګټــې او ټولنيز ارزښتونه پراته دي، چې بايد عملي شي.

که چيرې يو څوک ناروغه شي، په نورو دوستانو باندې لازمه ده چې د هغوی پوښتنې ته ورشي. په حديث شــريف کــې راغلي دي:

«يو مسلمان پر بل مسلمان شپږ حقونه لري:

- له بل مسلمان سره د مخامخ کېدو پر مهال یو پر بل سلام واچوي، د لومړي سلام اچوونکي ثواب ډېردی،
- یو مسلمان د بل مسلمان میلمستیا ومني،
- که یو مسلمان په غلطه لاره روان وي، پر بل مسلمان لازمه ده، نصیحت ورته وکړي،
- د یو مسلمان ورور د پرنجیدو پر مهال د «الحمدلله» ویلو پر مهال «یرحمک الله» ووایي،
- د مسلمان ورور په جنازې کې ګډون وکړي، د ناروغه مسلمان ورور پوښتنې ته ورشي. (پوښتنه یـــې وکـــړي) (السنن الکبرا)

د ناروغ په پوښتنه کې ټولنیزې او شرعي ګټې پرتې دي.

په یو حدیث شریف کې راغلي دي که یومسلمان ورور ناروغه وي او بل یې د پوښتنې لپاره ورځي، نو که چیرې د سهار وخت وي اویا زره ملایکې به ورسره روانې وي او د الله ﷻ له دربار څخه به د پوښتنې کوونکي لپاره د بښنې دعا کـــوي، آن تر هغه وخت پورې چې شپه راځي. که ماښام وي، نو هم به له پوښتنې کوونکي سره اویا زره ملایکي روانې وي او له الله ﷻ څخه به د پوښتنې کوونکي لپاره تر سهاره د بښنې دعا کوي.

دغه راز په یوه حدیث شریف کې له ابي برده رضي الله عنه څخه روایت دی چې امام حسن رضي الله عنه ناروغه و او ابو موسٰی رضي الله عنه یې پوښتنې ته ورغلی و، نو حضرت علي رضي الله عنه ورته وویل: چې ته زمونږ لیدو ته راغلی یې او که پوښتنې ته؟

نوموړي ورته وویل: چې پوښتنې ته راغلی یم، نوبیا وروسته علي رضي الله عنه وویل، چې یوه ورځ نبي کریم ﷺ وویل: «څوک چـــې د یوه ناروغ پوښتنه وکړي، هغه به د الله په رحمت کې وي. کله چې کښیني، په رحمت کې به ډوبیږي.»

په یو بل حدیث کې را غلي دي چې د پوښتنې کوونکی به د جنت په میووکې وي.

کله چې یوڅوک د چا پوښتنې ته لاړشي، د توان په اندازه یو څوخوراکي شیان ورته ورورړي او وخت په وخت یې پوښتنه کوي، نو د دوی دواړو ترمنځ دوستانه اړیکي نورې هم زیا تیږي او په راتلونکي کې ډېر ښه ملګري پاتې کیږي.

وایي چې نبي کریم ﷺ په یوه کوڅه تیریدلو او یوې یهودي ښځې پر هغه باندې خځلې اچولې. یوه ورځ نومـــوړې ښـــځه ناروغه شوه او په نبي کریم ﷺ باندې خځلې وانه چول شوې. نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه، دا څو ورځې کیږي چې پـــه مـــا باندې خځلې نه اچول کیږي. چا ورته وویل چې هغه ښځه چې په تا یې خځلې اچولې ناروغه شوې ده، نو بیا نبي کریم ﷺ د هغې یهودۍ ښځې پوښتنې ته ورغی، د هغې پوښتنه یې وکړه، نوموړې ترې ډېره خوشحاله او بیا مسلمانه شوه.

**اخځلیکونه:**

(ال الحدیث المختار کتاب)

- ( السنن الکبرا )

## دیارلسم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ادبي معاصر نثر | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– پښتو ادبي معاصر نثر او پراختیایي بهیر به یې وپېژني.<br>– د معاصر ادبي نثر د بېلګو په اړه به معلومات پیدا کړي.<br>– ادبي ټوټه، لنډه کیسه، ناول، رومان، داستان، طنز او بېلګې به یې وپېژني.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې سره ځواب کړای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، وینا، پوښتنې، ځوابونه، ځانګړي او ډله ییز فعالیتونه | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، اړوند توکي، توره تخته، تباشیر، تخته پاک | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي، تحریري، ګروپي فعالیت | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | روغبړ، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه او د تیر لوست ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی د نظم او نثر په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي. ولې نثر د نظم په پرتله ډېر کارول کیږي؟ د نظم جوړول څه ستونزه لري؟ بیا د زده‌کوونکو پام ډرامې ته راګرځوي، چې د همدې درسي کتاب په اووم لوست کې یې لوستې ده. د همدې معلوماتو له مخې نوی لوست پیلوي. | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی د تېر لوست کورنۍ دنده ګوري. یو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي، چې د ورکړ شوي درې متن پښتو ژباړه د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي. نور و زده‌کوونکوته لارښوونه کوي، چې خپلې ژباړې له هغې سره پرتله کړي.<br>– وروسته ښوونکی د نظم او نثر په اړه زده‌کوونکو ته د پوښتنو او ځوابونو په ترڅ کې معلومات ورکوي.<br>– ښوونکی د ادبي نثر بېلابېلې بڼې زده‌کوونکو ته ورپېژني او د هرې یوې بېلګه راوړي. زده‌کوونکي په بحث کې شریکوي.<br>– ښوونکی په پښتو ادب کې د معاصر ادبي نثر د تاریخ | – یو زده‌کوونکی د ښوونکی له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او له درې څخه خپل ژباړلی متن ورو ورو لولي. نور زده‌کوونکي خپلو ژباړو ته ګوري، تېروتنې په نښه کوي او له ښوونکي څخه پوښتنې کوي.<br>– د ښوونکو څرګندونو ته غوږ نیسي، پوښتنو ته یې ځوابونه وایي او معلومات وړاندې کوي.<br>– زده‌کوونکي د ادبي نثر بېلابېلې بڼې پېژني او له ښوونکي سره په خبرو اترو کې ځانونه ورګډوي.<br><br>– زده‌کوونکي پر دې ټکي ځانونه پوهوي چې معاصر ادبي نثر کله پښتو ادب ته لاره پرانیسته. پوره معلومات تر | |

په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.
- ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست متن ولولي او ځانونه پرې پوه کړي.
- ښوونکی د لوست د پای فعالیتونه په زده‌کوونکو سرته رسوي او په خپله لازمه مرسته ورسره کوي.
- ښوونکی د ټولګي د خپرونې (ورځپاڼه، جریده، مجله) په اړه د زده‌کوونکو د کار پرمختګ ګوري او لازمې لارښوونې ورته کوي.
- ښوونکي د پښتو نثر یوه ټوټه زده‌کوونکو ته ورکوي، چې په کورونو کې یې په درې وژباړي او بلې ورځې ته یې راوړي.

لاسه کوي.
- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم لوست لولي او ځانونه پرې پوهوي.
- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د لوست په پای کې په لیکل شوو ټولو فعالیتونو کې فعال ګډون کوي.
- زده‌کوونکي د ټولګي د خپرونې په اړه ښوونکي ته معلومات وړاندې کوي او د اړتیا په صورت کې ترې لارښوونې غواړي.
- زده‌کوونکي د پښتو نثر ټوټه اخلي، په کورونو کې یې پر درې ژباړي او پله بله ورځ یې ټولګي ته راوړي او د له لارښوونې سره سم یې له نورو ټولګیوالو سره شریکوي.

**اضافي معلومات:**

**د ادبي ټوټې بېلګه:**

**ښکالو**

د سپلمۍ لویو ګڼو بوټو او ګورو پاڼو کې هوسۍ له ځړنه سر پورته، شخوند یې بند کړو. غوږونه یې بوخ کړل، اریانه ودرېدله. داسې چې له ځانه نه وه خبره. ملخ د سپلمۍ په سرپاڼه ورو ورو غلی غلی راغی. د هوسۍ غوږ ته نږدې شو.

هوسۍ! څه دي؟ ولې خپه یې؟

هو! دا اوښکې، ولې واښه نه خورې؟ سپرلی تېر شو... واښه وچ څه؟ هوسۍ یوه طرف ته سترګې بکې کړي دي او غوږونه ټکي. ملخ بیا ووې. د چا ښکالو ده، څه؟

هوسۍ دیکه وخوړه. هو! نه، واښه وچ دي او نه ترې یم. ښکالو ده. د چا ښکالو، تشه ښکالو، بس ښکالو، د چا د یاد ښکالو!!

ملخ: پوه نه شوم؟

هوسۍ: ته لانه وې. دا سپلمۍ وړې وړې وې. زه او اشنامې دلته ځرېدو، ښکالو شوه. ما دغه شانې غوږونه بوخ کړل. دغه شان. اشنامې دغه شان ووې، همدغه شان لکه تا چې ووې...! ډز شو... موږ ټوپ کړ. زه تر باغه... د بادشاه د زوی سرکلې وه... ډمې ګډېدې، غوښې ورتېدې، بېګمې خندېدې، ملکه په تخت ناسته وه، زما د سترګو په اوښکو پوه شوه. لکه چې ته پوه شوې. آخر زنانه عالم و، ما ووې بې بې، مېرمنې! زما د ... تیکې ستا باور چې خانه کې ورتېرې. خو دا څرمن یې ماته راکړه. زه به یې په یوه ونه کې آوېزانده کړم... ورته به ګورم، د زړه سود به پرې کوم.

ملکې ووې: نه، څرمن تاته نشي درکولی، سویلو ووې: نه، هېچرې نه! دې نه به موږ تمبل جوړوو.

ګوره غوږ کښېږده! نن د هغه بادشاه د زوی سنتګیري ده...

تمبل وهلی شي. دغه آواز اورې؟ دا زما... د څرمنې تمبل دی... په مایې آواز خوږ لګې، زما پرې سود کېږي. ښکالو ده، ... زه پرې پوهېږم، ته پرې نه پوهېږې... سود پرې کوم سود!!

((سید راحت الله زاخیلی))

## خوارلسم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | ملي آرشیف | | د لوست موضوع |
| | زده‌کوونکي به ددې لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– ملي ارشیف به وپېژني.<br>– د ملي ارشیف پر تاریخي اهمیت به پوه شي.<br>– په ملي ارشیف کې د ساتلو مواد به وپېژني.<br>– د ملي ارشیف په اړه به خبرې او لیک وکړای شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې توګه ترسره کړی شي. | | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې |
| | لوستل، لیکل، اوریدل، سوال او ځواب، ډله ییز کاراو یوکسیزکار | | د تدریس لارې |
| | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک اوتباشیر | | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفاهي او عملي څارنه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴دقیقې | سلام او روغبړ، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې کتل | | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦دقیقې | ښوونکی د ملي ارشیف په اړه د زده‌کوونکو معلومات ارزوي، د ارشیف معنا ترې پوښتي او د زده‌کوونکو په مرسته په عمومي توګه د اسنادو د ساتلو د ځای په توګه د ملي ارشیف پر اهمیت رڼا اچوي. | | د انګېزې رامنځ ته کول |
| ۳۵دقیقې | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | |
| | – زده‌کوونکي د ښوونکی له لارښوونې سره سم د نوبت په اخیستلو د ژباړې په اړه نظر ورکوي، که سمون ته اړتیا وه د ښوونکي په مرسته یې سمون راوړي او په پای کې یو زده‌کوونکی نوی لاسته راغلی متن لولي او نور زده‌کوونکي خپل متنونه د هغه له مخې سموي.<br>– .زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، د ارشیف په معنا ځانونه پوهوي، د ملي ارشیف پر ځانګړتیا خبرې کوي، که کله کومې ادارې ته لاړل، د ارشیف یا مخزن پوښتنه کوي، په خپلو سترګو یې ګوري، په بله ورځ خپل معلومات له نورو زده‌کوونکو | – ښوونکی له یوې ژبې څخه بلې ته د ژباړې پر اهمیت او اړتیا خبرې کوي او وروسته د تېرې ورځې کورنۍ دنده ګوري. یو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي، چې خپله تر سره کړې ژباړه نورو زده‌کوونکو ته ولولي. ښوونکی د اړتیا په صورت کې مرسته کوي.<br><br>– ښوونکی د ارشیف په اړه د زده‌کوونکو د پوهې د ارزولو له لارې د هغوی معلومات بشپړوي، د ارشیف معنا څرګندوي، په ادارو کې د ارشیف کارونې ته ګوته نیسي او د ملي ارشیف د ځانګړتیا په اړه خبرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| - ښوونکي زده‌کوونکو ته معلومات وړاندې کوي چې د افغانستان په ملي ارشيف کې کوم راز اثار ساتل شوي او څه ارزښت لري.<br>- ښوونکی څو زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې په وار د کتاب له مخې يو، يو پراګراف ولولي.<br>- ښوونکی دوه دوه زده‌کوونکي راغواړي او د کتاب د مرکې په څېر پرې مرکه کوي. ښوونکی هڅه کوي چې ډېرو زده کونکو ته وار ورسيږي.<br><br>- ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي، لغات دې پرې معنا او په جمله کې دې پرې وکاروي.<br>- ښوونکی دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې د ملي ارشيف په اړه نورو ته په خپله ژبه خبرې وکړي.<br>- ښوونکی دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي، لومړی يو يو زده‌کوونکی يوه يوه جمله په پښتو وايي، بل يې په دري ژباړي. بيا همدا دويم زده‌کوونکی يوه، يوه جمله په دري ژبه وايي او لومړی زده‌کوونکی يې په پښتو ژباړي.<br>- ښوونکی د لوست لنډيز بيانوي او د څو پوښتنو له لارې د زده‌کوونکو پوهه ارزوي.<br>ښوونکی په پای کې کورنۍ دنده ورکوي. | سره شريکوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي پر معلوماتو ځانونه پوهوي او په ملي ارشيف کې د ساتل شوو اثارو په اړه معلومات پيدا کوي.<br>- زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم د کتاب له مخې يو يو پراګراف لولي او مفهوم ته يې فکر کوي.<br>- دوه، دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د کتاب د مرکې په څېر مرکه کوي. توپير نه کوي که مرکه يې ټکي په ټکي د کتاب په څېر نه وه.<br>- دوه، دوه زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخې ته راځي، يو تن د لوست د څلورم فعاليت له مخې لغت وايي، معنا کوی يې او بل يې په سمه او مناسبه جمله کې کاروي.<br>- دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او د ملي ارشيف په اړه معلومات وړاندې کوي.<br>- دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځي، لومړی يو زده‌کوونکی يوه پښتو جمله وايي او بل زده‌کوونکی يې په دري اړوي، بيا دويم زده‌کوونکی يوه دري جمله وايي او لومړی يې په پښتو اړوي. ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br><br>زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي، که پخپله کومه پوښتنه لري ځان پوهوي او په پای کې له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي. |

**اضافي معلومات:**

ارشيف يوه فرانسوي کلمه ده او هغه ځای ته وايي چې په هغه کې لاسي او چاپي لرغوني اثار (کتابونه، فرمانونه او نور دولتي او ملي سندونه) ساتل کيږي. زموږ په هيواد کې هم د ملي ارشيف په نامه داسې يو ځای شته چې په هغه کې ډول، ډول قلمي او چاپ شوي اثار، سندونه، د پاچهانو او واکمنانو فرمانونه او نور سندونه ساتل شوي دي. دغه ډول ټول سندونه زموږ د هيواد تاريخي مخينه او فرهنګي بډايي په ګوته کوي، نوځکه يې دغه ځای ته د (ملي ارشيف) نوم ورکړی دی. البته زموږ په هيواد کې ملي موزيم، چې لرغونې مجسمې، سکې او نور پخواني موندل شوي ډول ډول اثار او وسلې پکې خوندي دي، هم شته.

همدارنګه يو بل ځای هم شته چې د ملي ګالرۍ په نامه يادېږي. په هغې کې د انځورګرۍ او خطاطۍ تابلوګانې ساتل کيږي.

ملي ارشيف له هغو دواړو ځايونو سره دا توپير لري چې په ملي ارشيف کې لاس کښلې (خطي کتابونه) فرمانونه، او نور

سندونه، چې د تاریخ په بېلا بېلو دورو پورې اړه لري، شته او همدارنګه پخوانۍ چاپ شوي خپرونې چې زموږ په هیواد کې د مطبعې له رامنځته کیدو او د چاپ د لړۍ په پیل کیدو سره (د امیرشیرعلي خان له دویمې پلا واکمنۍ راهیسې) د هیواد په رسمي ژبو (پښتو او دري) چاپ شوي دي. په همدې ملي ارشیف کې خوندي دي.

په هیوا دکې د همدې فرهنګي ادارې له رامنځته کیدو څخه څه کم څلور لسیزې تیرېږي، خو په دې دومره موده کې هم هغې ته په لسګونو زره قلمي نسخې او چاپي کتابونه، د مجلو، ورځپاڼو کلکسیونونه، تاریخي فرمانونه، سندونه او ډول ډول لیکونه را ټول شوي او په مناسبه توګه په کې ساتل کیږي چې مینه وال د هغو ننداره وکړي او څیړونکي د خپلو څیړنو لپاره له هغو څخه استفاده کوي.له ملي ارشیف څخه بهر ته د اسنادو د ایستلو اجازه نشته. د ملي ارشیف ودانۍ د کابل ښار په سالنګ واټ کې ده. دا ودانۍ د امیرعبدالرحمن خان د وخت ماڼۍ ده. نوموړي امیر دا ودانۍ د خپل زوی، شهزاده حبیب الله خان د کار لپاره جوړه کړې وه. نوموړې ودانۍ دوه پوړه ده، لومړی پوړ یې تر ځمکې لاندې دي او بل پوړ یې د پاسه دی. دوه سالونونه او لس خونې لري.

د محمد داؤد خان د جمهوریت په وخت کې دغه ودانۍ د ارشیف لپاره غوره شوه او د عامه کتابتون تر ادارې لاندې یې فعالیت پیل کړ، خو په رسمي توګه په **۱۳۵۹**لمریز کال کې د اطلا عاتو او کلتور په وزارت پورې وتړل شوه. دغې ادارې له هماغه وخت څخه د تاریخي سندونو او چاپي نسخو او نورو هنري انځورونو د خوندي کولو لپاره کار کړی دی. په لومړي ګام کې هغه تاریخي اثار، چې په عامه کتابتون او یا په نورو ادارو کې وو، هغه یې راټول او په کې ځای په ځای شول او بیا د هیواد له ګوټ ګوټ نه هم دا ډول اثار را ټول شول. اوس زموږ په ملي ارشیف کې ډېر ارزښتناک اثار خوندي دي.

تر ټولو لرغوني نسخه په کې د قران کریم هغه سپارې دي چې د هوسۍ پر پوستکي لیکل شوي دي او لیک یې د حضرت عثمانﷺ په وخت کې شوی دی. بل لرغونی سند د تیموریانو په دورې پورې اړوند دی. د نوموړې دورې د سلطان حسین بایقرا د وخت فرمان دی چې په **۹۰۱**هـ کال په نستعلیق خط لیکل شوی او اوس په ملي ارشیف کې خوندي دی. په ملي ارشیف کې اوس د کتابونو په زرګونو خطي او چاپي تاریخي او انځوریزې نسخې شته. په دغو نسخو کې یو ډېر ارزښتناک کتاب،پټه خزانه ده چې محمد هوتک لیکلې ده. د یادونې وړده چې ملي ارشیف د یوې مهمې فرهنګي ادارې په توګه خپل ځانګړي تشکیلات او برخې لري. د کتابونو، قلمي نسخو ځانګړې څانګه لري او د چاپ شوو کتابونو لپاره بیله څانګه په کې ده. همدارنګه د خپرونو (مجلو، جریدو او ورځپاڼو) کلکسیونونه یې په بېله څانګه کې خوندې دي. فرمانونه، تاریخي سندونه او نور، د بیلا بیلو وختونو شخصي او دولتي سندونه بیا په بله څانګه کې خوندي دي.

د هیواد ملي ارشیف ته ورته ادارې د نړۍ په نورو هیوادونوکې هم شته. نو له همدې امله په نړیواله کچه د (سواربیکا) په نامه یوه اداره هم شته چې د هیوادونو له ارشیفونو سره د لازمو وسایلو او د کارکوونکو د مسلکي روزنې په برخه کې مادي او معنوي مرستې کوي. سواربیکا د ارشیفونو یوه نړیواله موسسه ده چې د ډیرو هیوادونو ارشیفونه یې غړیتوب لري.

زموږ د هیواد ملي ارشیف هم د ارشیفونو د نړیوال تنظیموونکي سازمان غړیتوب لري او د نوموړې ادارې له مرستو څخه وخت په وخت برخمن کیږي.

**اخځلیکونه:**


۱- اریانا دایرة المعارف، لومړی ټوک (دویم چاپ) د افغانستان د علومو اکاډمي، د اریانا دایرة المعارف مرکز

۲- تاریخچه ارشیف ملي، د اطلاعاتو اوکلتور وزارت، د ملي ارشیف د ادارې خپرونه

## پنځلسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | ښځې او ټولنه | | |
| **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | دلوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– په ټولنه کې به د ښځو پر حقونو او دندو پوه شي.<br>– په ټولنه کې به د ښځو دریځ او ارزښت وپېژني.<br>– عملاً به په کور، چم او ګاونډ کې د ښځو دریځ ته د درناوۍ د زمینې په چمتو کولو کې رغنده ګامونه پورته کړي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې ډول ځواب کړای شي. | | |
| **د تدریس لارې** | لوستل، لیکل، اوریدل، سوال، ځواب، ډله ییز کار او یوکسیزکار | | |
| **د تدریس وسیلې او مرستندوي توکي** | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک او تباشیر | | |
| **د ارزونې لارې او وسیلې** | شفاهي، عملي، څارنه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | | |
| **د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې کتل | | ۴ دقیقې |
| **د انګیزې رامنځته کول** | ښوونکی د ټولنې پر جوړښت او په هغې کې د نارینه اوښځو د شتون په اړه له زده‌کوونکو څخه د یو څو پوښتنو له لارې په لوست پیل کوي. | | ۶ دقیقې |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | | **د زده‌کوونکو فعالیتونه** | **۳۵ دقیقې** |
| – ښوونکی دې په ټولنه کې د نارینه او ښځو پر دریځ رڼا واچوي او څرګنده دې کړي چې د ژوند د طبیعي پرمختګ او ټولنیز توازن لپاره ښځې او نارینه یو بل ته څومره اړتیا لري.<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي چې د ښځو او نرینه وو برابروالی د بدني زور او طاقت له مخې نه، بلکې د انساني حقونو له مخې دی؛ دواړه یوشان حقونه لري.<br>– ښوونکی دې ددې ویناوو په اړه زده‌کوونکو ته څرګندونې وکړي، چې "د هر بریالي نارینه تر شا یوه ښځه شتون لري." او "ښځه په یو لاس زانګو او په بل | | – زده‌کوونکي دې له ښوونکي سره په بحث کې ونډه واخلي او ځانونه دې پر دې پوه کړي چې د ټولنې د رغنده پرمختګ لپاره د نارینه او ښځو توازن څومره اړین دی.<br>– زده‌کوونکي پر دې مفهوم ځانونه پوهوي چې د ښځو فزیکي جوړښت له نارینه وو سره توپیر لري. ښځې په فزیکي لحاظ له نارینه وو څخه کمزورې دي، خو په خلقت او انساني جوړښت، اړتیاوو او حقونو کې یوشان دي او یو له بل سره توپیر نه لري.<br>– زده‌کوونکي ددې ویناوو پر مفهوم ځانونه پوهوي او له ښوونکي سره پرې بحث کوي:<br>• د هر بریالي نارینه تر شا یوه ښځه شتون لري. | |

| | |
|---|---|
| جهان زنګوي." | • ښځه په یو لاس زانګو او په بل جهان زنګوي. |
| – ښوونکی په دې ټکي رڼا اچوي چې څنګه کولای شو، په کورنیو او له هغې وروسته په ټولنه کې د ښځوپه وړاندې تاوتریخوالی له منځه یوسو. د ښځو د انساني او شرعي حقونو د اعادې لپاره څه کول په کار دي. | – زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه هغه لارې چارې لټوي او خپل نظر څرګندوي چې د ښځو په وړاندې د موجود تاوتریخوالي د له منځه وړلو لامل کیږي. په همدې ډول د ښځو انساني او شرعي حقونه په ګوته کوي او لیکي یې. |
| – ښوونکی دې په دې اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکړي چې آیا د ښځو په وړاندې د پرتو ستونزو له منځه وړل یوازې د ښځو کار دی او که نارینه هم باید په هغې کې رغنده رول ولوبوي. | – زده‌کوونکي دې ټول په ګډه د ښځو په وړاندې پرتې ستونزې ونوموي او ودې وایي چې ایا ښځې کولای شي په یوازې سر هغه له منځه یوسي او که د نارینه وو مرسته او همکاري هم ورسره اړینه ده. |
| – ښوونکی دې په وار لس زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوبولي چې د هېواد په بېلا بېلو برخو کې د ښځو په وړاندې پرتې ستونزې بیان کړي. | – زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او په خپل کلي، کور، بانډې، ولسوالۍ، ولایت یا بلې کومې سیمې کې د ښځوپه وړاندې د پرتو ستونزو په اړه خبرې کوي. |
| – ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه یوه غونډه جوړه کړي. په غونډه کې دې پورته بیان شوې ستونزې یو په یو وڅیړي. | – زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم په غونډه کې برخه اخلي او پورته بیان شوې ستونزې یو په یو څیړي. |
| – ښوونکی دې پنځه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوبولي چې په ټولنه کې د ښځو پر دریځ یو په یو خبرې وکړي. | – پنځه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او په کور او ټولنه کې د ښځو د دریځ په اړه څرګندونې کوي. |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکو ته یو څو دقیقې وخت ورکړي چې فکر وکړي د هېواد ځوانان او پېغلې څنګه د راتلونکي لپاره کار او د یووالي او وحدت احساس پیاوړی کولای شي. | – زده‌کوونکي خپل فکر ازمویي او هغه لارې چارې لټوي چې له مخې یې ځوانان او پېغلې د خپل هېواد، راتلونکې او ملي وحدت د پیاوړتیا په اړه کار کولو ته رابولي. وروسته په خبرو کې برخه اخلي او خپل نظر له نورو زده‌کوونکو سره شریکوي. |
| ښوونکی د هر درسي ساعت په پای کې زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي او په کورونو یا کتابتونونو کې ورباندې کار کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**زرغونه انا:** د احمدشاه بابا مور وه. ژوند یې تر۱۰۷۴هـ.ق. پورې یقیني دی.

**عایشه دراني:** د تیمورشاه په وخت کې په کابل کې اوسېده. د یعقوب علي خان لور او د دري ژبې شاعره وه.

**رابعه بلخي:** په څلورمه پېړۍ کې یې ژوند کاوه. په ۳۲۹هـ ق کال کې مړه شوې ده .

**بي بي نیکبخته:** د شیخ الله داد لور وه. د ارشادالفقراء کتاب یې لیکلی دی.

**میرمن الایي:** د جلال الدین لور، د با یزید روښان لمسۍ او د شیخ عمر د زوی احداد مېرمن وه. د روښاني غورځنگ په مبارزوکې یې گډون کړی و. په ننگرهارکې د نجونو یوه لیسه د الا یي په نا مه نومول شوې ده.

**غازي ادې:** د انگریزانو د دویم تیري په وخت کې ژوندۍ وه. په جگړو کې یې برخه اخیستې ده. د لوگر اوسیدونکې وه. د غازیانو درملنه به یې کوله. غازي محمد جان خان وردگ ورته یو آس هم ورکړی و.

**ملالۍ:** د میوند اتله ملالۍ، په ۱۲۹۷هـــ ق کال د برات د میاشتې په ۱۷نیټه د میوند په د ښته کې د انگریزانو په وړاندې دافغانانو د جگړې اتله وه. ددې د اتلتوب له امله انگریزانو سخته ماتې وخوړه او له هېواده تېښتې ته اړ شول. دا لنډۍ هغې ته منسوبه ده:

که په میوندکې شهید نه شوې

خدایږو لالیه بې ننگۍ ته دې ساتینه

**اضافي معلومات:**

ښځې په هره ټولنه کې له نارینه وو سره په سیاسي، اجتماعي، فرهنگي، تعلیمي او نورو ډگرونوکې له خپل استعداد او وړتیا سره سم کار کوي.

ښځې زیاتره له زور زیاتي سره مخامخ دي. هر زور زیاتي په خپل وار د ښځو ژوند تریخ او له مرگ سره یې مخامخ کړی دی. له بده مرغه لا تر اوسه په ډېرو هیوادونو کې خپل روا حقونه ورته ورکړ شوي نه دي او یا لږ ورکړ شوي دي. ښځې د ټولنې نیمایي برخه جوړوي. همدغه ښځې دي چې د نړۍ پوهان یې روزلي دي، په یوه لاس زانگو زنگوي او په بل لاس جهان زنگوي.

د ۱۸۷۵م کال د مارچ پر اتمه نېټه د لومړي ځل لپاره په امریکا کې ښځو د خپلو حقوقو د لاسته راوړلو لپاره لاریون وکړ، خو په ډزو ځواب ورکړ شو. له دې پاڅون وروسته د نورو هېوادونو ښځو هم لاسونو ورکړل او خپلو مبارزو ته یې زور ورکړ. په پای کې د همدې مبارزو له امله په ۱۹۱۰ کال کې د مارچ اتمه د ښځو د نړیوالې ورځې په توگه وبلل شوه. له هغه تاریخ وروسته د نړۍ په ټولو هیوادونو کې دغه ورځ نمانځل کیږي.

د اسلام په سپېڅلي دین کې تر بل هر فرهنگ دمخه ښځو ته انساني لوړ حقونه ورکړ شوي دي. د لومړي ځل لپاره د نجونو ژوندي ښخول پای ته ورسول شول. د ښځو عزت او حیا خوندي شوه. د واده کولو او د مېړه د خوښولو اختیار یې تر لاسه کړ. د نکاح په وړاندې یې مهر واجب شو. د نفقې او د ژوند د نورو سهولتونو مسؤولیت یې د مېړه په غاړه شو... .

زموږ د هیواد د اساسي قانون په اساس ښځو ته حقوق ورکړل شوي چې له نارینه ووسره یو ځای د ټولنې په ټولو کارونو کې د خپل فزیکي توان په کچه اودغه رازپه دولتي ادارو کې کاروکړي .په سیاسي گوندونو، پارلمان او د دولت په لوړو څوکیو کې د کار کولو اجازه و لري . زموږ په هیواد کې د غازي امان الله خان په وخت کې د ښځو حقوقو ته پام وشو، چې په سیاسي او اجتماعي مسایلو کې گډون وکړي. د هغه وخت د اساسي قانون په جوړولو کې ښځو گډون وکړ او په ښوونځیو کې د زده کړې اجازه ورکړل شوه.

په ۱۳۵۷ کال کې د لومړي ځل لپاره د افغانستان ښځو د اسیایي هېوادونو د ښځو په کنفرانس کې گډون وکړ چې په سریلانکا کې جوړ شوي و. همدا اوس زموږ په دولتي ادارو، پارلمان او کابینه کې ښځې موجود دي او په ښوونځیوکې $\frac{1}{3}$ برخې زده‌کوونکي نجونې دي .

د اسلام دین د جنس د توپیر مخالف دی، خو که چیرې په رښتینې توگه څوک په اسلام کې د ښځو د حقوقو په هکله څېړنې وکړي، په ټولنیزو او سیاسي چارو کې د ښځو نظر ته پوره درناوی شوی دی. مثلا کله چې مسلمانان د دویم ځل

لپاره مديني منورې ته ننوتل .په هغوی کې ښځې هم وې، دغه راز په لومړي ځل په اسلام کې ښځو ته د سياسي ازادۍ حق ورکړ شوی دی. اسلام ښځو ته د انتخاب حق ورکړی دی. زموږ د اساسي قانون ۳۵ ماده هم وايي چې د افغانستان اتباع نارينه او ښځې سياسي احزاب جوړولی شي. دا هغه قانون دی چې د افغانستان ددينې علماوو په حضور کې د افغانستان د خلکو د استازو له خوا تصويب شوی دی . په هيواد کې په پارلماني ټاکنوکې ښځو ته د خپلوحقوقو د ورکړې په خاطر برخه ورکړل شوه له ۱۲ميليونو رايوڅخه په سلوکې تر۴۰زياتې د ښځو رايې وې دغه راز د ولسي جرګې په ۲۴۹څوکيو کې ښځې هم شاملې وې.

سره له دې چې په هيوادکې ښځوته د حقوقود ورکولو غږ شوی دی، خو هيله من يو چې دغه غږ لا زيات عملي شي چې ښځو ته د پوره زده کړې او د کار زمينه چمتو شي او د نارينه وو له خوا ورته حقوق ورکړل شي او دغه راز د مدنيت لمنه تر کليو پورې ورسيږي. نارينه وو ته او په تيره بيا تعليم يافته خلکو ته لازمه ده په ښځو باندې د زور زياتي کړی ماتي کړي. دغه راز د افغانستان ټول خلک او دغه راز ځوانان هم بايد د ښځو د حقوقو پر ارزښت پوه شي او د ټولنې په متوازنه وده کې د دغو حقوقو د رعايت په اغيزمنتوب باوري شي او بشري حقوق يې ترسره شي.

دا لازمه ده چې ځوانان په دې پوه شي چې دغو حقوقو ته په خپله کورنۍ، کلي، سيمه، خپل شاوخوا کې پاملرنه وکړي او نوروته يې هم پر عملي کولو ټينګار وکړي . ځوانان بايد په دې ټکو وپوهول شي چې له ښځو پرته ټولنه نيمګړې ده، بشريت نيمګړی دی او دهغوی له ونډې پرته د ټولنې او هېواد وده ناشونې ده. د ښځو د حق د لاسته راوړلو لپاره بايد ښځې او نارينه په ګډه هلې ځلې وکړي .

د ښځو د حقوقو په برخه کې اخځونه:


- ميرمنومجله، ۱۲ ګڼه، ۱۳۴۷ کال.
- ميرمنو مجله، ۳ ګڼه، ۱۳٦۲ کال.
- د بشر د حقوقو نړيواله اعلاميه ۱۳۸۴ کال.
- قانون اساسي ۱۳۸۴ د عدليې وزارت .
- په افغانستان کې پرښځوتاوتريخوالی، څيړنيز رپوټ ،۱۳۸۷هـ ش
- جامعه مدني مجله ۳ګڼه،۱۳۸۴کال،۱۲مخ

## شپاړسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | شاه حسین هوتک | | د لوست موضوع |
| | – زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>د شاعر په توګه به د شاه حسین هوتک په ژوندلیک پوه شي.<br>– پښتو ژبې ته به د نوموړي پاچا د خدمتونو په اړه معلومات تر لاسه کړي.<br>– د هوتکو په دربار کې به د پښتو ژبې پر درېځ وپوهېږي.<br>– پر دې به پوه شي چې «پټه خزانه» د شاه حسین په لارښوونه لیکل شوې.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې سر ځواب کړای شي. | | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې |
| | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه او ډلیز فعالیتونه | | د تدریس لارې |
| | شفاهي، عملي، څارنه، د پټې خزانې کتاب یا د پټې خزانې کوم متن | | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، تحریري پوښتنې او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴دقیقې | روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه، د تېر اونوي لوست ترمنځ ارتباط ورکول. | | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦دقیقې | ښوونکی د میرویس نیکه په اړه له زده‌کوونکو څخه د پوښتنو له لارې شاه حسین هوتک زده‌کوونکو ته ورپېژني او نوی لوست پیلوي. | | د انګېزې رامنځ ته کول |
| ۳۵دقیقې | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | |
| زده‌کوونکي د میرویس نیکه په اړه د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي او که د هغه وخت شرایط ورته معلوم وو، ښوونکي ته دې ځواب ووایي، که نه، د ښوونکي خبرو ته دې غوږ شي او ځانونه دې وپوهوي.<br>ــ یو زده‌کوونکی د ښوونکي له لارښوونې سره سم د خپلو معلوماتو له مخې د میرویس په اړه نورو ته معلومات ورکوي.<br>ــ زده‌کوونکي لوست له ځانه سره لولي.<br>ــ څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د لوست یوه برخه د کتاب له مخې لولي. | | – ښوونکی د لوست په پیل کې د میرویس نیکه په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي او په لنډ ډول د هغه د وخت او شرایطو په باره کې معلومات ورکوي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته شاه حسین ورپېژني او له پښتو ژبې سره د هغه د مینې په اړه لنډ معلومات وړاندې کوي.<br>– ښوونکی یو زده‌کوونکی راغواړي چې د تېرو ټولګیو د معلوماتو له مخې د میرویس نیکه په اړه خپل لنډ معلومات نورو زده‌کوونکو ته وړاندې کړي.<br>– ښوونکی زده‌کوونکو ته وایي چې لوست له ځانه سره ولولي.<br>– ښوونکی څو زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست | |

| | |
|---|---|
| يوه، يوه برخه د کتاب له مخې ولولي.<br>– ښوونکی له څو زده‌کوونکو څخه د نوي لوست په اړه شفاهي پوښتنې کوي. (لومړی فعالیت)<br>– ښوونکي څو زده‌کوونکو ته وايي چې د شاه حسين شعر د کتاب له مخې ولولي. (څلورم فعاليت)<br>– ښوونکی دوه زده‌کوونکي رابولي چې د شاه حسين شعر لومړی په نثر واړوي او بيا يې په دري وژباړي. (پنځم فعاليت)<br>– ښوونکی دوه زده‌کوونکي د ټولګی مخې ته راغواړي، يو يې له لوست څخه يوه لنډه جمله وايي او بل يې په دري ژبه اړوي. بيا دويم زده‌کوونکی يوه دري جمله وايي او لومړی هغه يې په پښتو اړوي.<br>– ښوونکی د لوست لنډيز وايي او وروسته زده‌کوونکي ارزوي.<br>– ښوونکی کورنۍ دنده ورکوي:<br>په لومړۍ ورځ ورته وايي چې د شاه حسين شعر په کورونو کې په پښتو نثر واړوي او بيا دې په دري ژبه وژباړي. په دويمه ورځ دې د کتاب له مخې دنده ورکړي. | ــ زده‌کوونکي د ښوونکی پوښتنو ته ځوابه ورکوي.<br>ــ څو زده‌کوونکي د شاه حسين شعر د کتاب له مخې په ښه غږ لولي.<br>ــ دوه تنه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د شاه حسين شعر پر نثر اړوي او بيا يې په دري ژباړي.<br>ــ دوه زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راځي او له لارښوونې سره سم يو زده‌کوونکی جمله وايي او بل دې په دري واړوي او برعکس.<br>ــ زده‌کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي، ځانونه پوهوي، د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي او خپلې ستونزې هوارروي.<br>زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي. |

**اضافي معلومات:**

په ۱۱۳۵ هـ کال کې کرمان ته د ميرويس نيکه د مشر زوی، شاه محمود له تګ وروسته د هغه کشر ورور، ميرحسين چې وروسته په شاه حسين باندې مشهور شو، د فراه له سبزوار (اوسني شين ډنډ) څخه تر غزني، ګومل، پښين اوشال تر ديره جاتو پورې ۱۵ کاله خپلواک سلطنت درلود. د نومړي واکمني پر هند باندې د نادر افشار تر بريد پورې دوام درلود. شاه حسين هوتک په ۱۱۱۴هـ کال کې د ربيع الاول په ۲۳ نيټه د قلات د سيورې په سيمه کې زيږيدلی، تر ۱۲ کلنۍ پورې يې د وخت دوديز علوم: تفسير، منطق، بلاغت او ادب له ملا يارمحمد هوتک څخه زده کړل. وروسته په مستقيمه توګه د خپل پلار تر روزنې لاندې راغی. د مملکت داری اصول او د چارو اداره يې له خپل پلار څخه زده کړه. کله چې شاه محمود د فراه په لوري او وروسته د خلکو په غوښتنه د کرمان لورې ته ولاړ، نو د سلطنت چارې له لنډ ځنډ وروست شاه حسين ته ورپښودل شوې. خلکو هم ورسره ومنله. خطبه هم دده په نامه وويل شوه او سکه هم دده په نامه شوه. د نومړي د حاکميت ساحه له لويديځ څخه تر هرات سيستان پورې او د ختيځ له لورې تر ګومل او جنوبا د اوسني پښتونستان تر جنوب پورې وه. کله چې د جنوبي پښتونستان شال (شالکوټ) سيمه فتحه شوه او شاه حسين ته يې خبر ورسيد، نو ملا زغفران ورته يو شعر ووايه. شاه حسين ونازاوه او ټولو حاضرينو ته يې يو، يو زعفرانې شال ورکړ.

شعر داسې و:

د حسين پادشاه د بخت ننداره ګورئ

چې شي فتح په لښکرو ړوب وشا ل کا

چې دا زيرى يې راوړى دى حضور ته
نو زغفران انعام پر سر زعفراني شال كا
شاه حسين هوتک يو ډير علم دوسته او طبيعت خوښوونكى پاچا و . له خلكو سره يې په ډيره مهرباني چال چلن كـاوه. دده په وخت كې خلک ډير ارام وو. نوموړي پاچا پر خپلو اړوندو كارونو سربېره له علم او ادب سره ډيره مينه درلوده په هره اوني كې به يوځل دده د دربار په سلطنتي كتابخانه كې علمي او ادبي غونډې جوړيدلې چې پـه هغـو كـې بـه علماوو، اديبانو او د قندهار مشهورو خلكو ګډون كاوه. كله به يې شاعران را غوښتل او مشاعرې به يې كـولې. د پټـې خزانې قيمتي او ارزښتناک كتاب، چې د پښتو ژبې ليكلي ادبيات يې تر ۱۳۹هــ كال پورې ورسـول، د شـاه حسـين هوتک په امر محمد هوتک وليكه. محمد هوتک په نوموړي كتاب كې د هغه وخت د نارينه اوښځينه شـاعرانو تـذكرې وليكلې. دغه راز نوموړي پاچا پيښور ته هم كاتبان وليږل چې د عبدالرحمان بابا د ديوان بيلا بيلې نسخې نقـل كـړي او قندهار ته يې راوړي. پخپله شاه حسين هم په پښتو او درې ژبه شعرونه ويل او يو بشپړ ديوان ترې پاتې دى. شاه حسـين سره له دې چې شاعر او اديب و، د مملكت دارۍ په كارونو كې يې هم ډير مهارت درلود، په عسكري مسلک كې يـې هم پوره پوهه درلوده؛ ځكه ۱۵ كاله وروسته نادر افشار د خپل لوى پوځ په ملتيا سره په قندهار باندې را وخوځيـد، نـو شاه حسين يونيم كال د هغه په وړاندې د فاع وكړه. شاه حسين له ۱۵ كاله حكومت كولو وروسته په كنـدهار كـې د شعبان په ۱۰ نيټه په ۱۱۵۲هــ كال په مازندران كې وفا ت شو، د نوموړي په وفات سره د هوتكيـانو لـړۍ پـاى تـه ورسيده.

**اخځليكونه:**


۱– ميرغلام محمد غبار، افغانستان در مسير تاريخ، لومړى او دويم ټوک.
۲– هوتكي ها، عبد الرووف بينوا.
۳– پټه خزانه د محمد هوتک ليكنه

# اوولسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | ټولنه او نوی نسل | | د لوست موضوع |
| | د لوست په پا ی کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– په ټولنه کې د ځوان نسل (لوستو پېغلو او ځوانانو) پر اهمیت او ارزښت به پوه شي.<br>– په ټولنیزو کارونو کې به په مسؤولانه ډول ونډه واخلي.<br>– د خپلې ټولنې په اصلاح او سمون کې به خپلې دندو اومسؤولیتونو ته پام وکړي.<br>– د موضوع په اړوند به په شفاهي او لیکلي ډول معلومات ورکړای شي.<br>– نورو پېغلو او ځوانانو ته به د لارې مشال شي.<br>– په خپلو کورونو، چم او ګاونډ کې به د ناسم دود، پر نشې د روږدې کېدو، د کوکنارو د کرکېلې او نورو ناوړو دودونو په مخنیوي کې له مشرانو سره مرستندوی شي.<br>– د لیک او وینا وړتیا به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به له مرستې پرته ځواب کړای شي. | | د زد ه کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې |
| | لیکل، لوستل، اورید ل، پوښتنه او ځواب او ډله ییز کار | | د تدریس لارې |
| | درسي کتا ب، کتابچه، تباشیراو تخته | | د تدریس وسیلې اومرستندوي توکي |
| | شفاهي پوښتنې، څارنه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | سلام روغبړ، د کورنۍ کار لیدل او د تېر لوست ارزونه | | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦ دقیقې | – ځوان نسل څاته ویل کیږي<br>– وایي پېغلې او ځوانان د یوې ټولنې د ملا تیر جوړوي. څه معنا؟<br>– تاسې د یوې پېغلې او ځوان په توګه په خپل کور، چم او ګاونډ څه کولای شئ؟<br>– له خپل ځان څخه ستاسو تمه او توقع څه شی ده؟ | | د انګیزې رامنځته کول |
| ۳۵ دقیقې | د زد ه کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | |
| – زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي. پــه دې مطلب ځان پوهوي چې ځوان نسل څوک دی؟ پــه ټولنه کې د هغوی ارزښــت ځانتــه مجســموي. د | | – ښوونکي د لوست د ورودي برخې له مخې د نــوي یــا ځوان نسل په اړه له زده‌کوونکو سره خبرې کوي. لــه ټولنې سره د هغوی اړیکي او په ټولنه کې د هغــوی پــر | |

ارزښت رڼا اچوي. له ځو زده‌کوونکوڅخه غــواړي پــه خپله خوښه د پېغلو او ځوانانو د دندو او مسؤولیتونو په اړوند خبرې وکړي.

- ښوونکی ورو، ورو او په ځرګند ډول متن لولي. په ټولنه کې د پېغلو اوځوانانو ارزښت د انسان په بدن کې د ملا د تیر یا شمزۍ له هډوکو سره پرتله کوي. څنګه چــې انسان له شمزۍ پرته ودرېدای نشي او خوځښت نشــي کولای، داسې یوه ټولنه هم له ځوانانو پرته پر خپلوپښـــو نشي ودرېدای.

- ښوونکی پر ځو زده‌کوونکو یو، یو پراګراف متن لــولي او د متن د لوستلو پر لارو چارو یې پوهوي.

- ښوونکي په وار ځو زده‌کوونکي د ټولګی مخــې تــه راغواړي چې له پېغلو او ځوانانو څخه دده هیله او تمــه څه شی ده.

- ښوونکي زده‌کوونکي په ډلو ویشي او هرې ډلې ته دنده ورکوي چې په ټولنې کې د ښو کارونو د دودولــو او د ناوړو دودونو (په ودونو او مړو کې بیځایه لګښـــتونو د مخنیوي، نشه یي توکو د کرکېلې او کارونې ...) پــه اړوند په خپلو کې خبرې وکړي او په پای کې د هــرې ډلې یو استازی د خپلې ډلې پرېکړې د ټولګي په وړاندې نورو زده‌کوونکو ته وایي.

- ښوونکی دې دوو زده‌کوونکو ته دنده ورکړي، چــې د ډلو پرېکړې یادداشت کړي.

- ښوونکی د لوست لنډیز تکراروي او پــر زده‌کوونکـــو سپارښتنه کوي چې لومړی ځانونه وروزي او بیا د خپلې کورنۍ او ټولنې په اصلاح او سمون کې له مســؤولیت څخه ډک ګامونه واخلي.

- ښوونکی د پښتو د لوست په لومړي ساعت کې د کتاب یو لنډ او خوږ متن زده‌کوونکو ته ورکــوي چــې پــه کورونو کې یې په درې واړوي. او په دویم یــا دریــم درسي ساعت کې د لوست د پای دنده وسپاري او په بله ورځ دې وګوري.

ښوونکي له لارښوونې سره سم ځو زده‌کـــوونکي د نورو زده‌کوونکو په وړاندې په ټولنه کې د پېغلـــو او ځوانانو د ونډې په اړه خبرې کوي.

- زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي او په دې ټکي ځانونه پوهوي چې ولې پېغلې اوځوانان د ملا لــه تیــر یــا شمزۍ سره پرتله شــوي دي. پــه دې اړه دې پــه عمومي خبرو اترو کې ځانونه ورګډ کړي.

- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونو سره سم یو، یو پراګراف هغسې لولي، چې د تلویزون یو ویاند یــې لولي. زده‌کوونکي هڅه کوي چې په ټولګي کــې د متن د لوستلو له لارې په ځانونو کې د ویاندۍ وړتیا وروزي.

- زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته ځي او له پېغلو او ځوانانو څخه د خپلو غوښتنو په اړه خبرې کوي.

- زده‌کوونکي په ډلــوکې ځانونــه تنظیمــوي او د ښوونکي له لارښوونو سره سم په ډله کې فعاله ونډه اخلي،خپل نظر ځرګندوي او هغه لارې چــارې پــه ګوته کوي چې په ټولنه د نېکمرغۍ او سوکالۍ لوري ته بیایي. هر زده‌کوونکي مکلف دی چې خپــل نظــر وړاندې کړي. هرڅوک د نظر د ورکولو حق لري، په سم او ناسم نظر خبرې نه کیږي. د نورو نظر ته د درناوۍ حق لا له همدې ځایه باید په ځـــانونو کـــې وروزل شي. زده‌کـــوونکي دې پـــه وار د ټـــولګي مشرتوب او استازیتوب وکړي، چـــې وړتیـــا وروزل شي

- زده‌کـــوونکي د لوســـت لنډیزتـــه غـــوږ ږدي او د ښوونکي لارښوونې د زړه په غوږونو اوري او عملي کوي یې.

- زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او پـــه بـــل درســـي ساعت کې یې راوړي.

زده‌کوونکي د ټولګي د خپرونې د کار د پرمختګ په اړه ښوونکی ته معلومات ورکوي، که ستونزه یـــې درلـــوده، مرسته او لارښوونه ترې غواړي.

**اضافي معلومات:**

ځوانان د ټولنې هغه مهم قشر دی چې ټولنه د هغوی له غوښتنو سره سم حرکت کوي. ځکه ځوانان د فزيکي، فکري او بدني پلوه دومره پياوړي او غښتلي دي چې نور څوک ورسره سيالي نشي کولای. پېغلې او ځوانان په عمومي توګه د ډېرو پاکو احساساتو خاوندان او د خپلو هېوادوالو د خدمت په لاره کې سرښندنو او هلو ځلو ته تيار دي. پېغلې او ځوانان ډېره انرژي لري. که چيرې له دوی سره لږه مرسته او لارښوونه وشي، کولای شي د ځان او هيواد لپاره خپله انرژي په يوه ډيره ګټور ه لاره وکاروي. که مناسبي لارښوونې ورته وشي او ښه وروزل شي، نو ټولنه به د سوکالۍ او نېکمرغۍ لوري ته يوسي. نن سبا ساينس او تکنالوژي ډيره پرمخ روانه ده، د نړۍ دا بيساری پرمختګ د تعليمي سيستمونو دننه د برياليو هڅو زيږنده ده. دا پرمختګونه د رسالتمندو ځوانانو د هاند او هڅو پايله ده. موږ غواړو د تعليمي سيستم او فني زده کړو له لارې زموږ پېغلې او ځوانان خپل ځانونه د علم او تخنيک په نوو ګاڼو سمبال کړي، له هيواد سره د مينې پر بنسټ وروزل شي او د هيواد په بيا ودانولو کې د ټولو مخکښ (پيش آهنګ) شي. پېغلې او ځوانان د ټولنې د آبادۍ او پرمختګ ستر رسالت پر غاړه لري، خو دا رسالت او د هغې سرته رسول په تشو خبرو نه کيږي، بايد خپل تير تاريخ مطالعه او د نړۍ اوسني شرايط په پام کې ونيول شي. پېغلې او ځوانان بايد ددې ټولنې د راتلونکي مسؤوليت منونکي مشران وي او خپل مسؤوليت د علم او پوهې او سالمې روزنې له لارې سرته ورسوي.

زموږ ځوانان او پيغلې کولای شي د پوهې اوسالمې روزنې په لاسته راوړلو سره د نړۍ د پرمختګ په کاروان کې مخکې لاړ شي او هم سره يو او يو موټی شي او د شيرشاه سوري په وينا له قوميت څخه ووځي اوملت جوړ کړي. زموږ ځوانان بايد په هيوادکې د پرتو نيمګړتياوو د ليري کولو په لاره کې د ودانولو خواته هڅې وکړي او پرتې بدبختۍ په خپل يووالي اوميښې سره له منځه يوسي. زموږ ځوانان بايد ديندار، هيوادپال او د علم په ګاڼه سمبال وي او د هغوی ټول حرکتونه او عملي مهارتونه دټولنې د ابادی بنسټونه ټينګ کړي. راځئ چې د خپل هيواد ځوانان د خپل هيواد د راتلونکي لپاره يوبل ته د ورورۍ په پاکه روحيه وروزو او د تمدن له کاروان سره جوخت لاړشي.

**اخځليکونه:**


۱– ځوانان اوشخصيت جوړيدنه ، داکترتاج الدين (ملت مل)

۲– تلوسه ننګرهار، خپلواکه، کلتوري او معلوماتي خپرونه، څلورم کال، لومړۍ ګڼه، ۱۳۸۷ کال.

## اتلسم لوست

## د تدريس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | علامه پوهاند عبدالشکور رشاد | |
| د زده کړې پــوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>– عبدالشکور رشاد به وپېژني او د هغه د ژوند او ادبي خدمتونو پــه اړه بــه معلومات پيدا کړي.<br>– د پښتو ادبياتو په تاريخ کې به نوميالۍ څېرې وپېژني.<br>– د هېواد د ملي او ادبي څېرو په اړه به يې معلومات زيات شي.<br>– د ليک او وينا ژبه به يې پياوړې شي.<br>– د متن وروستي فعاليتونه به په خپلواک ډول تر سره کړای شي. | |
| د تدريس لارې | يو کسيز، ډله ييز، دوه کسيز او خبرې اترې | |
| د تــــدريس وســــيلې او مرستندوی توکي | کتاب، تخته، تبا شير، کارتونه او د پوهاند رشاد عکس | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي پوښتنې، تحريري پوښتنې، يوکسيزې پوښــتنې، ډلــه ييــز کــار او د ښوونکي د يادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تــدريس لومړني فعاليتونه | سلام، روغبړ، د حاضرۍ اخيستل، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتــل، د تير لوست پوښتنه، انګيزوي پوښتنې او د تير او نوي لوست تــرمنځ ارتبــاط ورکول. | ۴دقيقې |
| د انګېزې رامنځ ته کول | – ښوونکی د تېر لوست کورنۍ دنده ګوري. دوه يا درې زده‌کوونکــو تــه لارښوونه کوي چې د ټولګي په وړاندې راشي او خپله ژباړه ولولي. ښوونکی د ژباړې په سمون کې لازمه مرسته کوي او د ژباړې پر ارزښت خبرې کوي. وروسته د هېواد د ادب د تاريخ د نومياليو په لړ کې د اروابناد پوهاند رشــاد په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي او د هغوی په ځوابونو نوی لوســت پيلوي. | ٦دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه | ۳۵دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی په انګيزوی برخه کې له راغلــي فعاليــت او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د پوهاند رشــاد د ژونــد ليک او اثارو په اړه خبرې کــوي او زده‌کوونکــو تــه معلومات ورکوي. | – څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې ســره ســم کورنۍ دنده د نورو په وړاندې لولي. نور زده‌کوونکي خپله ژباړه ورسره پرتله کوي او اصلاح کــوي يــې. وروسته د ښوونکي له لارښوونې سره سم د پوهانــد رشاد په اړه خپل معلومات له نورو زده‌کوونکو ســره شريکوي. | |
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چــې د کتــاب | –زده‌کوونکي لوست د کتاب له مخې له ځانه سره لولي | |

لوست له ځانه سره ولولي او مطلب يې واخلي.

- ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست يوه، يوه برخه د ټولګي په وړاندې ولولي.

- ښوونکی دوو زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې د حريت شعر د ټولګی په وړاندې ولولي او مفهوم يې په دري ژبه نورو ټولګيوالو ته ووايي.
- ښوونکی يو زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې د حريت شعر په روان پښتو نثر واړوي.
- ښوونکی يو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د پوهاند رشاد د ژوند او ليکنو په اړه وغږيږي.
- ښوونکی دې د لوست د پای د فعـــاليتونو لـــه څلـــورم فعاليت سره سم زده‌کوونکي په ډلو وويشي او نومـــوړی فعاليت دې پرې سرته ورسوي.
- ښوونکی دې دوه زده‌کـــوونکی د ټـــولګي مخـــې تـــه راوغواړي او د کتاب د دويم فعاليت د بېلګې پـــه څېـــر دې پرې خبرې اترې وکړي.
- ښوونکی د لوست لنډيز وايي او له زده‌کوونکو څخـــه د څو پوښتنو له لارې زده‌کوونکي ارزوي.

- ښوونکي په لوست کې د پوهاند رشاد د نثري بېلګـــې: جبار غازي له متن څخه دا برخه: «يوه ورځ چـــې زه د شکريو د رانيولو ... يعنې پر اوږو يې په ســـپکه څپيـــړه ټيوي» زده‌کوونکو ته د کورني کار په توګه ورکړي چې په کورونو کې يې په روانه دري ژبه وژباړي.

او پر مطلب يې ځانونه پوهوي، د اړتيا په صورت کې له ښوونکي څخه پوښتنه کوي.
- زده‌کوونکي د نوبت له مخې د لوست يوه، يوه برخـــه د نورو ټولګيوالو په وړاندې ولولي.

- دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د حريت شعر په ښه غږ لولي او مفهوم يې په خپله ژبـــه نورو ټولګيوالو ته اوروي.
- يو زده‌کوونکی په خپله خوښه د ټولګي مخې ته ځـــي اود حريت شعر په روان پښتو نثر اړوي.
- يو زده‌کوونکی د ښوونکی په خوښه د ټولګي مخې ته راځي او د پوهاند رشاد د ژوند او ليکنو پـــه اړونـــد خبرې کوي.
- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم ځانونه په ډلو کې تنظيموي او د لوست څلورم فعاليت سرته رسوي.

- دوه زده‌کوونکي د ښوونکي تر څار لاندې د لوست د دريم فعاليت په څېر مرکه کوي.

- زده‌کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او ځانونـــه پوهوي چې د يوې ټولنې د ليکوالو او شـــاعرانو پـــر ژوندليک او اثارو پوهېدل ولې اهميت لري.
- زده‌کوونکي د پوهاند رشاد د نثر بېلګه: جبار غازي په لوست کې پيدا کوي او په ښه شوی پراګـــراف دې په کورونو کې په روانه دري ژبه وژباړي او پـــه بلـــه ورځ دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم په ټـــولګي کې نورو ته واوروي.

**اضافي معلومات**

پوهاند عبدالشکور رشاد په ۱۳۰۰ هــ.ق. کال کې د کندهار ښار د بابړو په کوڅه کې زيږيدلي.په کوچنيوالي کې يـــې دوديزې ديني زده کړې سرته ورسولې او بيا د کندهار د ګنج په ښوونځي کې د ښوونکي په توګه مقرر شو. د عمـــر لـــه پلوه يې د کوچني ښوونکي په نامه شهرت پيدا کړ. په ۱۳۲۵ هــ ق (۱۹۴۶ م) کال د کندهار د ښار د انتخابي ټـــولنې (انجمن) رئيس او په ۱۳۲٦ ل (۱۹۴۷ز) کال د کندهار د ښاروال مرستيال شو. له ۱۳۲٦ ل (۱۹۴۷ز) کال وروسته په ۲۷کلنۍ کې پخپلو شخصي پيسو د زده کړې لپاره هند ته لاړ. اووه کاله په هند کې د ژبو، ادبي فنونـــو او تـــاريخي مسايلو په برخه کې په مطالعه بوخت و. د پښتنو او پښتو په اړه يې ژورو څېړونو ته دوام ورکړ، چې د "لـــودي پښـــتانه"

او"سوري پښتانه" ليکنې يې ښې بېلگې دي.

په ۱۳۳۵کال کې د پښتو ټولنې غړی او وروسته مرستيال شو. په همدې وخت کې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبيـــاتو د پوهنځي استاد هم و. په ۱۳۴۰ ل (۱۹۶۱ز) کال د دوو نيمو کالو لپاره د پخواني شوروي اتحاد ته د لېننگراد ښـــار د ختيځ پېژندني د انستيتوت د پښتو ژبې د استاد په توگه ولېږل شو. افغانستان ته له بېرته راستنېدو وروسته د کابل پوهنتون د ژبو، ادبياتو او بشري علومو د پوهنځي په پښتو څانگه کې استاد او بيا د دغې څانگې د (ډيپارټمنـــټ) مشـــر شـــو. د ۱۳۵۷ ل (۱۹۷۸ز) کال تر پيښې وروسته تقاعد ورکړ شو.

استاد په شوروي اتحاد کې د پښتو ژبې استاد و. په ۱۳۴۳کال کې د ادبياتو په پوهنځي کې په تدريسي چارو بوخت و. په ۱۳۵۳کال کې د پوهنوالی رتبې ته ورسيد. او په ۱۳۵۶کال کې پوهاند شو. استاد رشاد لومړی شعر پـــه ۱۳۱۳ ل (۱۹۳۴ز) کال د ديارلس کلنۍ په عمر ويلی. د هغه لومړی شعر په ۱۳۱۷ ل (۱۹۳۸ز) کال کې او لومړۍ څېړنيـــزه ليکنه يې په ۱۳۲۰ ل (۱۹۴۱ز) کال د افغانستان په مطبوعاتو (طلوع افغان) اخبار کې خپاره شوې ده. د ده په وينا لـــه ۲۶ کلنۍ څخه د ويښو ځلميانو د نهضت غړی و. په ۱۳۶۱ کال کې د اکادمسين علمي مقام ورکړل شو. پوهاند رشاد په فارسي، عربي، روسي، انگليسي او هندي ژبوبرلاسی و.

په ترکي پوهېده او جاپاني ژبه يې زده کړې وه.

**اثار:**

استاد په لسگونو کتابونه لکلي دي او دغه راز يې په کتابونو سريزې او سپړنې ليکلې دي. تراوسه يې ۳۰ اثـــار چـــاپ شوي او تر۶۲ ډېر اثار يې ناچاپه پراته دي. دغه راز د استاد په سلگونو مقالې او ليکنې په خپرونو کې را غلي دي.

# نولسم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | (روزنیزه) کیسه | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>– د کیسه لیکلو لارې چارې به زده کړي.<br>– د کیسې پر مفهوم به ځانونه پوه کړي.<br>– د علم او پوهې پر ارزښت به پوه شي.<br>– د کیسو د لیکلو په اصلي ارزښت او ماهیت به پوه شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست وروستي فعالیتونه به په خپلواکه توګه ترسره کړای شي. | |
| د تدریس لارې | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | چارټونه، کارتونه، تخته، تباشیر او تخته پاک | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي، لیکنې ، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او سوال اوځواب | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست پوښتنه، د نوي او پخواني لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول | ۴دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی د تېر لوست د کورنۍ دندې پوښتنه کوي، یو، دوه زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې رابولي او ورته لارښوونه کوي چې خپله کورنۍ دنده نورو ته واوروي. ښوونکی نیمګړتیاوې سموي او د پوهې په ارزښت خبرې کوي او په ټولنه کې د کیسو پر رول رڼا اچوي. | ٦دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی د کورنۍ دندې له لېدلو او اصلاح وروسته په ولسي ادبیاتو کې د کیسو پر رول او ارزښت خبرې کوي او زیاتوي چې د دا راز کیسو مضمون زیاتره واقعي نه وي، ولې د خلکو د پام اړولو اوکله ناکله د عبرت لپاره په ولس کې د خلکو تر منځ موجوده وي.<br>– ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست د کتاب له مخې ولولي. وروسته څو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې کیسه په خپله ژبه نورو ته بیان کړي. | –دوه زده‌کوونکي خپله سرته رسولې کورنۍ دنده د نورو ټولګیوالو په وړاندې لولي او د ښوونکي له لارښوونې سره سم هغه اصلاح کوي. وروسته ښوونکي ته غوږ ږدي اود کیسو پر مضمون اومحتوا ځانونه پوهوي. په داسې حال کې چې د کیسو اهمیت او ارزښت ته پام کوي، ګوري چې که کومه داسې کیسه یې زده وي، له ښوونکي او نورو ټولګیوالو سره دې شریکه کړي.<br>–زده‌کوونکي لوست د کتاب له مخې لولي، پر مفهوم یې ځانونه پوهوي او وروسته د ښوونکي له لارښوونې سره سم یې نورو زده‌کوونکو ته بیانوي.<br>–دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او له | |

| | |
|---|---|
| - ښوونکی دوه زده‌کوونکو ته بلنه ورکوي چې د ټــولګي مخې ته راشي، يو دې په کيسه کې د راغلو موضوعګانو په اړه له بل څخه پوښتنه وکــړي او هغــه دې ځــواب ووايي. (شپږم فعاليت)<br>- ښوونکی دې څو زده‌کــوونکي د ټــولګي مخــې تــه راوغواړي او د لوست د پای فعاليتونو پنځم فعاليت دې پرې سر ته ورسوي.<br>- ښوونکی دې زده‌کوونکو ته وخت ورکړي چې د لوست په اړه خپل نظر نورو ته بيان کړي.<br>- ښوونکی دې د لوست لنډيز ووايي او د پوښتنو په تــرڅ کې دې زده‌کوونکي وآزمايي.<br>- زده‌کوونکو دې د لوست له مفهوم سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | لاربښوونې سره سم يو له بل څخــه پوښــتنه کــوي او ځوابونه وايي.<br><br>- څو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راځي او د لوســت د پای د پنځم فعاليت په څېر په خپلو کې په وار خبــرې کوي.<br>- زده‌کوونکي، له هغه ورروسته چې د کيسې پر مفهوم پوه شول، خپل نظر نورو ته څرګندوي.<br>- زده‌کوونکي د لوست پر لنډيز ځانونه پوهوي، د ښــوونکو پوښتنو ته ځوابونه وايي او پر لوست خپله پوهه ازمايي.<br>- زده‌کوونکي له لاربښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي او د خبرو کولو وړتيا غښتلې کوي. |

**اضافي معلومات:**

کيسې د نړۍ په هره ژبه کې وي شته او رامنځته کيږي. په هره کيسه کې د همغه ټولنې د سمون لپاره ځــانګړی پيغــام پروت وي. په ټولنه کې کيسې ډيره لرغونتيا لري. کيسې ډير ډولونه لري. ځينې په کې داسې وي چې لرغونتوب يې ډيــر وړاندې ځي. په داسې کيسو کې اصلي موخه د ټولنې اصلاح او تربيتي خواوې چې پدې باره کې ملي هينــدارې (موســی خان اوګل مکی، مومن خان او شرينی، ادم خان او درخانی، دلی اوشهی) نوم اخيستلای شو. کيسې زموږ په ژبه کــې د شفاهي ادبياتو يوه ډيره مهمه برخه ده. دغه کيسې په شفاهي او ليکلي ډول موجودې دي، خو تر ليکلي ډول يې شــفاهي خوا ډيره درنه ده. همدا اوس زموږ په ولسونوکې د خلکو په خولو کې ډيرې کيسې شته چې لاتراوسه پورې د قلم په ژبــه خوندې شوي نه دي او له يوې خولې څخه بلې خولې ته ليږدول کيږي او له يوه نسل نه بل ته ليږديږي.

په پښتو ژبه کې روزنيزې کيسې په پخوا وختونوکې ډيرې زياتې دودوي او په هره سيمه کې به د شپې په ديرو، حجرو او کورو کې ويل کيدې او ځينو ليکوالو دغه کيسې په نظم سره هم راوړي دي. زموږ په روزنيزو کيسوکې ځينې زموږ خپلې کيســې دي چــې هغه په پښتني ماحول کې زيږيدلې دي، لکه :د ادم خان او درخانی، فتح خان او رابيا او دغه راز د موسی خان اوګل مکی او داسې نورې کيسې او ځينې پدې کيسو کې بيا له بهرنيو ژبوڅخه راژباړل شوي دي، لکه د ليلی او مجنون کيسه.

زموږ په ژبه کې د اخلاقي او روزنيزو کيسو له جملې څخه دا فولکلوريکې کيسې ډيرې مهمې دي او دا ځکه چې ديــوه ځانګړي هدف په خاطر رامنځته شوي دي.

پدې فولکلوريکو او روزنيزو کيسو کې موخې دادي چې ځوان نسل ته د دغو کيسو پواسطه اخلاقي خوا ورپياوړې کــړي او پــه ځوان نسل کې د موخې د لاسته راوړلو لپاره هڅه او مبارزه وکړي او په نتيجه کې خپل هدف ترلاسه کړي. په داسې کيسو کــې جملې لنډې لنډې وي او ستونزمن لغتونه اوجملې په کې نه ليدل کيږي. پدې کيسو کې ځينې اوږدې ، ځينې لنډې کيســې وي ، اخلاقي خوا په کې مراد وي ،لکه :د مولوي احمد او منشي احمد جان کيسې چې دداسې کيسو د ليکلو په برخه کې يې په پښــتو ژبه کې لوی لاس درلود او پدې برخه کې يې ډير اثار ليکلي دي  چې د قصه خانې ګپ او هغه دغه يې ښه مثالونه يادولای شو.

**اخځليک:**

ملي هينداره، د ننګرهار نکلونه، د فولکلور مجله

## شلم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | کتاب اوکتابتون | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– د معلوماتو او پوهې د یوې سرچینې په توګه به د کتاب اوکتابتون په ارزښت پوه شي.<br>– د معلوماتو او پېښو د لیکنې ارزښت به وپېژني.<br>– د کتابونو د لیکلو د مخینې او لنډ تاریخ په اړه به معلومات ومومي.<br>– متن به په سمه توګه ولوستلی او ولیکلی شي.<br>– د کتاب او کتابتون د ارزښت په هکله به خبرې وکړای شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د متن وروستي فعالیتونه به په خپلواکه توګه ترسره کړای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتني او ځوابونه، یوکسیز او ډلییز فعالیتونه | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | تخته، تخته پاک، تباشیر، مارکر، کتاب، کتابچه، پنسل او قلم او د امکان په صورت کې له کتابتون څخه د زده‌کوونکو لیدنه | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکنیزه ارزونه، د لیکلو اولوستلو ډلییز کار څېړل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او روغبړ، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې لیدل، د تیر لوست ارزونه او له نوي لوست سره د هغه تړاو | ۴دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی د پوهې، علم او فرهنګ د سرچینو او خپرېدونکو وسیلو په توګه د کتاب، مجلو، جریدو، ورځپاڼو او خپرونو پر ارزښت د خبرو له لارې پر نوي لوست پیل کوي. | ۶دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵دقیقې |
| – ښوونکی له زده‌کوونکو غواړي هر یو په خپل وار د کتاب او کتابتون د اهمیت او ارزښت په اړه خپل نظر ورکړي.<br>– ښوونکی له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي، چې که کتاب نه وای، آیا علم او پوهه او نورې پېښې به له یوه شخص یا یوه نسل څخه بل شخص یا بل نسل ته څنګه انتقالېدې.<br>– ښوونکی له ځو تنه زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د وروستي ځل لپاره یې کوم کتاب مطالعه کړی | – ټول زده‌کوونکي په بحث کې برخه اخلي او هر یو په خپل وار د کتاب او کتابتون په اړه خپل نظر بیانوي.<br>– څو زده‌کوونکي په خپل وار د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي او په خپلو ځوابونو کې د کتاب ارزښت څرګندوي.<br>– زده‌کوونکي د واقعیت له مخې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي او که کوم کتاب یې نه وي مطالعه کړی، نو سم ځواب دې ورکړي.<br>– زده‌کوونکي لوست له ځانه سره لولي. | |

دی.

– ښوونکی زده‌کوونکو ته سپارښتنه کوي چې لوست د کتاب له مخې له ځانه سره ولولي.
– ښوونکی څو زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست یوه، یوه برخه د ټولګي په وړاندې ولولي.
– ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي او لارښوونه دې ورته وکړي چې یو زده‌کوونکی دې د لوست د پای د پنځم فعالیت پوښتنې وکړي او بل یې ځواب ورکړي.
– ښوونکی دې دوه د ټولګي مخې ته راوغواړي، چې یو د کتاب له مخې یوه، یوه جمله ووایي او دویم په دري وژباړي.
– ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي او ورته دې ووایي چې په خپل منځ کې د کتاب او کتابتون په اړه محاوره وکړي.
– ښوونکی دې د لوست لنډیز ووایي او زده‌کوونکي دې د یو څو پوښتنو له لارې و ارزوي.
ښوونکی دې په پای کې په لوست کې د کتاب په اړه د پترارک وینا: «زه یوه ډله ملګري لرم.... خپلې غوره لارښوونې له ما څخه نه سپموي.» زده‌کوونکو ته د کورنۍ کار په توګه ورکړي چې په کورونو کې یې په روانه دري ژبه وژباړي.

– څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د لوست یوه، یوه برخه ولولي.
– دوه زده‌کوونکي دې د لوست د پای پنځم فعالیت له لارښوونې سره سم سرته ورسوي.

– دوه زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راځي، یو زده‌کوونکی د کتاب د لوست له مخې یوه جمله وایي او بل یې په دري ژبه ترجمه کوي.
– دوه زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او د کتاب او کتابتون په اړه په خپل منځ کې خبرې اترې کوي.

– زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي، که پوښتنه لري له ښوونکي څخه یې کوي او وروسته د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.
زده‌کوونکي د لوست له مخې دوه پراګرافه متن په نښه کوي او له لارښوونې سره سم یې په کورونو کې په دري ژبه ترجمه کوي. پر دې سربېره په بل ساعت کې د کورنۍ دندې په توګه د کتاب او کتابتون په اړه څو کرښې مقاله لیکي.

**اضافي معلومات:**

د اسلام له راتګ سره په افغانستان کې د دیني علومو د زده کړې، تبلیغ او تدریس مرکزونه جوړ شول او د تدریس لـــړۍ پکې پیل شوې. ددغو مرکزونو مدرسینو، مبلغانو او زده‌کوونکو ته د عامو او ځانګړو کتابتونونو موجودیت یوه حتمـــي او اړینه خبره وه.

د تاریخ ګزیده مولف حمدالله مستوفي لیکلي چې د غوري پادشاهانو په دوره کې یوازې په هرات کـــې (۳۰۹) لـــویې او وړې کتابخانې موجودې وې. دا چې زموږ د هیواد د لرغوني دورې زیات اثار د زماني توپانونو له ځـــان ســـره وړي دي، اوس یوازې ددغو دورو څو د ګوتو په شمار تاریخي کتابتونونو درک په لاس کې دی چې هغه هـــم زیـــاتره دوخـــت د حاکمانو او واکمنانو په ستاینو اوجنګي کارنامو اود نورو حالاتو ښـــکارندوی دي. د (ســـیر تـــاریخي کتابخانـــه هـــا درافغانستان) لیکوال له ځینو تاریخي اثاروڅخه په استفاده په خپل اثر کې پدې دورې پـــورې د اړونـــد و یـــو شـــمیر کتابخانو یادونه کړې ده. چې دلته په لنډ ډول یو شمیر درپیژنو:

**د بخارا د سلطنتي مانۍ کتابتون کتابخانه**

وايي چې سامانيانو د خپلې واکمنۍ په وخت کې په بخارا کې يو کتابتون جوړ کړ. يوازنی مآخذ چې موږ ددغه کتـــابتون له شتون څخه خبروي هغه د بوعلي سينا ژوند ليک دی چې هغه په خپل قلم ليکلي دي. نوموړی وايي چې ما يوه ورځ له نوح بن منصور ساماني (٣٦٥-٣٨٧هــ)څخه وپوښتل چې د هغه کتابتون ته ورننوځم او د کتابونو مطالعه کوم. هغــه اجازه راکړه. لوی سرای و، ډيرې خونې يې درلودې. په هره خونه کې د کتابونو صندقونه يو پربل ايښي وو. په يوه خونه کې د عربي شعرونو کتابونه ايښـــي وو. په بله کې د فقهي کتابونه او په همدې ترتيب په هره خونه کې د بيلوبيلو علومو کتابونه ايښـــي وو. هغه څه چې ما ورته اړتيا درلوده، ترې ومې پوښتل داسې کتابونه مې پکې وموندل چې خلکـــو يـــې نومونه اوريدلي هم نه وو. ما هم اوريدلې نه وو او نه مې بيا وروسته وليدل، بيا مې هغه کتابونه ولوستل او ګټه مې تـــرې واخيسته.

مولفين وايي چې د ابن سينا له مطالعې نه لږ وروسته دغه کتابتون وسوځيده او د وخت حاکمانو بيا د هغې د سوځولو تور په ابن سينا بلخې ولګاو.

**د ابومحمد هاشم البستي کتابتون**

نوموړی ٣٥۴-هــ د ساماني او صفاري دورې ديني عالم او ليکوال و. هغه په بست کې يوه مدرسه جوړه کړې وه چـــې ستر کتابتون يې درلود. د فتوح البلدان ليکوال د هغې يادونه کړې او وايي چې له دغه ستر کتابتون څخه ډيـــرو طالبـــانو علمي استفاده کوله.

**بلعمي کتابتون**

په بخارا کې يو ستر کتابتون و چې په بلعمي کورنۍ پورې يې اړه درلوده ،کيدای شي چې بنسټ ايښودونکی يې ابو الفضل وي. دغه کتابتون د وخت له مشهورو کتابتونونو څخه و چې ډير شمير خلکو ورڅخه علمي استفاده کوله.

**د بلخ د زندان کتابتون**

د فضايل بلخ نومې کتاب په استناد په ١٧١هــ کال په بلخ کې د خراسان د والي جعفر بن محمد الاشعث په اهتمـــام د بلخ د زندان مدرسه جوړه شوه چې د طالبانو او مدرسانو د استفادې لپاره يې يو لوی کتابتون هم درلوده.

**د ابوالفضل هروي کتابتون**

ابوالفضل هروي د هرات او سامانيانو د کورنۍ د واکمنۍ په وخت کې د دربار له مشهورو دينـــي علمـــاوو څخـــه و. نوموړی په رياضي او د نجوم په علم کې د زياتي مطالعې او معلوماتو خاوند و. مورخينو هغه د يو ستر کتـــابتون يادونـــه کړې ده چې زيات شمير ديني او په نورو علومو پورې اړوند کتابونه يې درلودل.

**د غزني ملي او عامه کتابتون**

د( سير تاريخي کتابخانه ها در افغانستان) ليکوال نامتو مؤرخ، پوهاند عبدالحی حبيبي د څيړنې په اسنادو کې ليکـــي، د غزنويانو د واکمنۍ په موده کې په غزني کې يو عامه کتابتون موجود و چې هرچا ورڅخه استفاده کولای شوه. نومـــوړي کتابتون يو خزانه دار درلود چې د کتابتون د مديريت دنده يې سرته رسوله. ويل کيږي چې ددغه کتابتون فهرســـت هـــم ترتيب شوی و او د کتابونو د خوندې ساتلو لپاره يې صندقونه جوړ کړي وو. انګليسي راهب الکوتين هم ورڅخه علمـــي

استفاده کړې او ویلې یې دي چې دا یو ملي کتابتون و.

**د سلطان محمود غزنوي کتابتون**

سلطان محمود غزنوي د خپلې واکمنۍ په دوره کې له بیلابیلو سیمو (له هیوادونو څخه) زیات شمیر کتابونه راټول کړي دي او لوی کتابتون یې جوړ کړی و. د ایران نامتو مؤرخ رکن الدین فرخ په عقیده دغه کتابتون د سلجوقیانو له خوا د سلطان مسعود تر ماتې وروسته ولوټل شو.

**د عروس الفلک مسجد د مدرسې کتابتون**

سلطا ن محمود عزنوي د عروس الفلک جومات کتابتون په زیات لګښت جوړ کړ او د هغه ترڅنګ یې یوه مدرسه هم جوړه کړه چې د خلکو په مالي مرسته یې د طالبانو او مدرسینو لګښتونه برابرول. دغې مدرسې لوی کتابتون درلوده چې د مدرسې طالبانو او ښوونکو ترې استفاده کوله.

**د ابوالعباس فضل استقرايني کتابتون**

ابوالعباس فضل د غزنوي دولت له مشهورو فرهنګي څیرو څخه و. سربیره پردې چې د سلطان محمود غزنوي د واکمني په وخت کې تقریبا ۱۷کاله یې د وزارت دنده سرته رسولې وه، نوموړې یو ستر کتابتون درلود چې یوازې ده او د ده کورنۍ ترې استفاده کوله.

**د نیشاپور سعدیه مدرسې کتابتون**

د سلطان محمود کشر ورور، نصر بن سبکتګین هغه وخت چې د خراسان سر لښکر و، په نیشاپور کې یې د سعدیه په نوم یوه دیني مدرسه جوړه کړه. دغې مدرسې یو کتابتون هم درلوده.

**د خواجه میرک د مدرسې کتابتون**

امیر ابوالحسن احمد بن محمد بیهقي چې میرک یې تخلص کاوه (۴۴۸هـ کال کې مړ دی) د غزنوي دورې نامتو سرلښکر و. نوموړي په غزنې کې یوه مدرسه جوړه کړه چې دغه مدرسه او کتابتون د هغه په نوم یاد شو.

**د سید ابوالخیر کتابتون**

نوموړی ( ۳۵۷-۴۴۰هـ ) د خراسان له نومیالیو څخه و. پخپله سیمه، میهنو کې یې مدرسه جوړه کړه او کتابتون یې هم جوړ کړ.

په دې وخت کې یو شمېر نور کتابتونونه هم موجود وو، چې نومونه یې دا دي:
- د سلطان مسعود بن ابراهیم غزنوي کتابتون
- د ابوسعید مدرسې کتابتون: ابوسعید اسما عیل بن علي بن منشي استرابادي د مدرسي کتابتون
- د نیشاپور د مدرسې کتابتون
- د اسفرایني مدرسې کتابتون: په نیشاپور کې د ابواسحاق اسفرایني په نامه مدرسه او کتابتون و

- د سرخس کتابتون، د لرغوني خراسان د سرخس په سيمه کې يو لوی کتابتون و.
- محمد بن منصورسرخسي کتابتون د خراسان د نامتو قاضي القضات کتابتون و.
- د خاتون مهد عراق کتابتون
- د بلخ نظاميه کتابتون د نظام الملک په وخت کې جوړ شوی دی او په ۵۵۰هـ کال د غزنويانو په يرغل کې په بشپړه توگه له منځه لاړ، تالا ترغی شو.

**د خليلو مدرسې کتابتون**

نوميالي قاضي القضات خليل بن احمد بن اسمعيل شجري چې په ابوسعيد مشهور و، په ۴۱۸هـ کال يې په بلخ کې د قليله مدرسې بنسټ کېښود. د فضايل په کتاب کې يې د کتابتون يادونه شوي ده.
- د مروې کماليه کتابتون د مروې د جومات ترڅنگ و.

**د ابوعلي حسن بن قطاران مروزي کتابتون**

ابو علي حسن (۴٦۵-۵۴۸هـ) کې په مروه کې يوه کتابتون جوړ کړ.

**د مروې عزيزيه کتابتون**

ددې کتابتون موسس عزيز الدين ابوبکر زنجاني و. د ياقوت حموي په قول يې ۱۲۰۰توکه کتابونه درلودل.

- د مروې د شرف الملوک کتابتون چې موسس يې ابوسعيد محمد بن منصور شرف الملک (۴۹۴هـ کال مړ ) دی
- د مروې د نظام الملک کتابتون
- د مروې عمديه کتابتون: ابونصر الکندي چې په عميدالملک (۴۵٦هـ کې مړ ) مقلب و.
- د مروې د مجد الملک کتابتون: مجدالملک ابوالفضل اسعد بن محمد بن موسی ته منسوبه ود ملک شاه سلجوقي د دربار وزير و.
- د مروې خاتونيه کتابتون: د نوميالی ميرمنې خاتون پواسطه جوړ شوی دی.
- د مروې ضميريه کتابتون:
- د مروې تاج الاسلام کتابتون: امام تاج الاسلام معين الدين ابوبکر سمعاني جوړکړی و.
- د مروې سمعاني کتابتون: دا کتابتون شهاب الدين سمعاني په مروه کې جوړ کړی و.
- د احمد بن محمد غزالي کتابتون: احمد غزال په (۵۲۰هـ ) مې مړ شو د امام غزالي ورور و
- د حجت الاسلام غزالي کتابتون: امام غزالي په خانقا کې لوی کتابتون جوړ کړی و.
- د شهاب الدين غوري کتابتون: په غور کې يې جوړ کړی و.
- په زميناور کې د اکبر کتابتون
- د هرات د مدرسي کتابتون
- د رشيدالدين وطواط کتابتون چې زر توکه کتابونه يې درلودل.
- د سلطان محمود خوارزمشاه کتابتون چې د تاتاريانو په يرغل کې لوټ شو.
- د ميرنجم الدين کبري کتابتون: شيخ نجم الدين کبري (٦۱۸هـ کې مړدی).

– د بخارا سرپلد ښار ګوټي کتابتون.
– د ملک تاج الدین بن ابوالفضل کتابتون: تاج د نیمروز له نومیالیو څخه و.
۴۸– د ملک تاج الدین حرب کتابتون: ملک تاج الدین د تاج ابوالفضل لمسی دی چې له خپل تره شمس الدین څخه وروسته د نیمروز والي شو.
–د سر جوض کتابتون
– د نیشاپور د شافیانو کتابتون
د چنګیز له یرغل نه وروسته د معاصر افغانستان تر جوړښت پورې (۶۱۸–۱۱۶۰هـ ) پورې زموږ په هیواد (لرغوني خراسان، پښتونخوا، روه) کې د کتابتونو په دغه څه د پاسه پنځه سوه کلن تاریخي بهیر کې په ترتیب سره د چنګیزیانو، کرتانو، تیموریانو، بابریانو، د ختېکو د سردارانو ،غلجیانو او هوتکو د واکمنیو دورې شامل دي.
د هرات د تیموریانو په عصر کې د افغانستان فرهنګي حالت (۷۷۱–۹۰۶هـ) په دې دوره کې د نورو علمي او فرهنګي مرکزونو ترڅنګ زیاتي مدرسې او خانقاوې، لکه: اخلاصیه مدرسه، خواجه انصار خانقاه، بدیعه مدرسه، چهار منار مدرسه، سلطان اغا مدرسه، امیر غیاث بخشي مدرسي او نورې د هرات د ښارترڅنګ په نورو لویو او وړو ښارونو او سیموکې موجودې وې چې ټول یې لوی او یا کوچني کتابتونونه درلودل .دلته د هغو له ډلې څخه هغه کتابتونونه چې ددې دورې په تاریخي او عرفاني کتابونوکې یې یادونه شوې ده په لنډ ډول درپیژنو:
د ملک فخرالدین کرت کتابتون، د غیاثیه مدرسې کتابتون، د سیفي هروي کتابتون، د ملک حسین کرت دمدرسې کتابتون، د شیخ رضي الدین کتابتون، د امیر علیشیر نوایي کتابتون، د بدیعیه مدرسي کتابتون، د اخلاصیه مدرسې کتابتون، د چهار منار مدرسې کتابتون، د سلطان احمد میرزا کتابتون، د فصیحیه مدرسې کتابتون، د خواجه جلال الدین غزنوي د مدرسي کتابتون، د ګذرګاه د مدرسې د خانقاه کتابتون، د انجیل د سرپل د مدرسي کتابتون، د سید غیاث الدین محمد باغبان د مدرسي کتابتون، د امیرعلي شیرجلایر کتابتون، سلطاني کتابتون، د سلطا ن دلیل مرزا کتابتون، د فخري هروي کتابتون، د خواجه فضل الدین محمد د مدرسي کتابتون، د سلطان ابراهیم مرزا د مدرسي کتابتون، د خواجه اسماعیل حصاري د مدرسي کتابتون،

د هوتکیانو په دوره کې (۷۱۹–۱۱۵۰هـ) د افغانستان علمي او فرهنګې حالت د ودې او فرهنګ په دې زرینه دوره کې به ښایي د پورتنیو یادو شوو او دوی ته ورته د نورو علمي شخصیتونو په کورونو، مدرسو، خانقاوو او جوماتونو کې عامې او ځانګړې کتابتونونه وو، خو دا چې موږ ته د پټې خزانې د مولف محمد هوتک د څرګندولو له مخې یو کتابتون معلوم دی، په یادونه یې اکتفا کوو:

**د کندهار د نارنج د ماڼۍ کتابتون**
ددغې ماڼۍ د کتابتون په هکله د پټې خزانې مولف محمد هوتک په څرګندونو کې لولو: «پادشاه عالم پناه په ارګ کې د قندهار هغه قصر چې نارنج باله شي هلته په هفته کې یوه ورځ دربارکا، په کتب خانه کې او په مجلس کې علما جمع کیږي او شعرا او فضلا ټول وي. زه محمد هوتک کاتب ددې کتاب هم پدې مجلس کې یم.»
**د معاصر افغانستان له جوړښت څخه تر خپلواکی پورې (۱۱۶۰–۱۹۹۸هـ) پورې:**
لومړی د درانیانو په دوره کې (۱۱۶۰–۱۲۴۵هـ):
ددې دورې د لومړۍ برخې د کتابتونونو تاریخي بهیر په لنډې پیژندګلوۍ پیل کوو:

– د احمدشاه بابا سلطنتي کتابتون، د احمد شاه بابا ځانګړی کتابتون، د پای منار پاچا صاحب کتابتون، د مــلا ادریـــس کتابتون، د ملا فیض الله خان دولت شاهي کتابتون، د پای حصار د مدرسې کتابتون، د ملا احمد کتابتون، د کابل شـــاهي کتابتون، د عبدالله وکیل الدوله کتابتون، د شاه فضل الله کتابتون، د شیخ سعدالدین انصاري کتـــابتون، د مـــلا احمـــد کتابتون، د ملا عبدلاحد سلجوقي کتابتون، د ملاسید بارکزي کتابتون، د مولوي حبیب الله کتابتون، د کامران شاه دراني کتابتون او نورې.

**د محمد زیو دوره (۱۲۱٦–۱۳۳۸هـــ)**

د اقتدار لپاره د کورنیو جګړو او د خپل منځیو اختلافاتو په نتیجه کې له سدوزیو څخه محمدزیو ته واکمني ولېږدیدلـــه. لومړی واکمن یې امیر دوست محمد خان و. زموږ ډیرې علمي او فرهنګي پانګې د کورنیو جګړو په لمبو کې ســـوځیدلې او خاورې شوي دي. خو یو شمیر کتابتونونه ترې په لاندې ډول پاتي دي:

۱– د قاضي محمد سعید خان خانعلوم کتابتون، ۲– د سردار مهردل خان مشرقي کتابتون، ۳– د امیر علـــي شـــیرعلي خان سلطنتي کتابتون، ۴– د شیر دل خان (لویناب) کتابتون، ۵– د غـــلام محمـــد طـــرزي کتـــابتون، ٦– د مولـــوي عبدالرحیم کندهاري کتابتون، ۷– د واصل کتابتون، ۸– د امیر عبدالرحمن خان کتـــابتون، ۹– د قاضـــي ســـعدالدین کتابتون، ۱۰– د شاهي مدرسي کتابتون، ۱۱– د کابل د چوب فروشی کتابتون، ۱۲– د مولوي عبدالروف کنـــدهاري کتابتون، ۱۳– سلطنتي کتابتون، ۱۴– د معارف کتابتون ۱۵– حبیبیه کتابتون، ۱٦– د میرزامحمد حســـین مســـتوفي کتابتون، ۱۷– نایب السلطنه کتابتون، ۱۸–سراج الملته والدین کتابتون، ۱۹– ممتـــاز کتـــابتون، ۲۰– حبیـــب الله کتابتون، ۲۱– عنایت الله کتابتون، ۲۲–عینه کتابتون ۲۳– د محمود طرزې کتابتون ۲۴– د ملا خداداد کتـــابتون، ۲۵ – د مولوي عبدالرب کتابتون، ۲٦– د میرزا شیراحمد جلال ابادي کتابتون،

**له خپلواکی ۱۲۹۸–۱۳۵۷هـــ پورې،** ۵۱ کتابتونونه او د هر ولایت په مرکز کې دولتي کتابتونونه او له ۱۳۵۷– ۱۳۸۳پورې هم لوی کتابتونونه رامنځته شوي دي.

## یوویشتم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | بشري حقونه | | |
| د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– بشري حقونه او بېلابېل ډولونه به يې وپېژني.<br>– د بشري حقونو پر منشاء او تاريخچې به پوه شي.<br>– د بشري حقونو د غوښتنو په اړه به يې معلومات زيات شی.<br>– د ليک او وينا ژبه به يې پياوړې شي.<br>– د لوست د پای فعاليتونه به په يوازې سره ځواب کړای شي. | | |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، وينا، پوښتنې، ځوابونه، ځانګړې او ډله ييز فعاليتونه | | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، اړوند توکي، توره تخته، تباشير او تخته پاک | | |
| د ارزولو لارې او وسيلې | شفاهي، تحريري او ګروپي فعاليت | | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | روغبړ، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه او د تير لوست ارزونه او د ښوونکي د يادداشت کتابچه | | ۴ دقيقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی په اسلام کې د بشري حقونو پر بنسټونو رڼا اچوي، د قران کريم له مخې د زده‌کوونکو پام د انسانانو برابرو حقونو ته اړوي، چې يو پر بل تفوق او برتري يوازې د تقوا او پرهيزګارۍ له مخې ګڼي او بس. په بشري حقونو اوږدې خبرې اترې کوي او د زده کوونکو مينه نوي لوست ته راپاروي. | | ٦ دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | | د زده‌کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| – ښوونکی د بشري حقونو د توضيح په اړه له زده‌کوونکو سره مرسته کوي، د اسلام د سپېڅلي دين له مخې بشري حقونه ورپېژني او د مور پلار، ښوونکي، ګاونډي، ناروغ، کشرانو او مشرانو د حقونو په څېر حقونه بيانوي او زده‌کوونکو ته پوره معلومات ورکوي. | | – زده‌کوونکي بشري حقونه پېژني او پر دې ځانونه پوهوي چې اسلام بشري حقونو ته په کومه سترګه کتلي، د مور پلار، ګاونډي، ښوونکي، د مشرانو حقونه پر کشرانو او همدارنګه د کشرانو حقونه پر مشرانو، د ناروغ حقونه کوم دي او څنګه ورته درناوی کېدای شي. | |
| – ښوونکی د تاريخ په اوږدو کې د بشري حقونو پر ودې رڼا اچوي او د بشري حقونو د درناوي پر اړتيا ټينګار کوي. | | – زده‌کوونکي د بشري حقونو پر تاريخي ودې او هغه ته د درناوي پر اړتيا ځانونه پوهوي. | |
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته بلنه ورکوي چې لوست د کتاب له مخې ولولي او ځانونه پرې وپوهوي. | | – زده‌کوونکي لوست د کتاب له مخې لولي او ستونزمنې برخې يې په نښه کوي. | |
| – ښوونکی څو زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او | | – څو زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د لوست، | |

| | |
|---|---|
| د لوست یوه برخه پرې لولي. | یوه یوه برخه لولي. |
| – ښوونکی څو زده‌کوونکو ته وایي چې د بشري حقونو په اړه لنډې خبرې وکړي او ووایي چې د دوی په اند بشري حقونه څه شی دي. | – څو زده‌کوونکي د ښوونکي په خوښه د بشري حقونو په اړه خبرې کوي او څرګندوي چې د دوی په اند بشري حقونه کوم دي. |
| – ښوونکی زده‌کوونکي په څو ډلو ویشي. هره ډله په ترتیب سره د بشري حقونو، د ښځو د حقونو او د ماشومانو د حقونو په اړه په خپل منځ کې خبرې کوي، خپل معلومات لیکي او یو تن استازی یې نورو ته وایي. | – زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه په ډلو کې تنظیمیږي او د ورکړ شوي موضوع په اړه په خپلو کې خبرې کوي او پایله یې یو استازی نورو ټولګیوالو ته اوروي. |
| – ښوونکی دوو زده‌کوونکو ته وایي چې د بشري حقونو د تاریخي ودې او پراختیا په اړه خبرې وکړي. | – دوه زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د بشري حقونو د ودې او پراختیا په اړه وینا کوي. |
| – ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه په خپل هیواد کې د بشري حقونو د وضعې په اړه پوښتنې وکړي. | – زده‌کوونکي په خپل هېواد کې بشرى وضعه څېړي او په دې اړه خپل نظر څرګندوي. |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکو ته ووایي یو څو اصطلاحګانې او ترکیبونه پیدا او یو تر بله دې پرتله کړي. | – زده‌کوونکي د اصطلاحګانو او ترکیبونو توپیر پیدا او یو تر بله یې پرتله کوي. |
| – ښوونکی څو زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته راغواړي او ورته وایي، یو دې په پښتو خبرې وکړي او بل دې په دري ژبه واړوي، بیا دې بل زده‌کوونکی په دري ژبه خبرې وکړي او لومړی دې په پښتو واړوي. | – څو زده‌کوونکي په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راځي او د ښوونکي له لارښوونې سره سم فعالیت سرته رسوي. |
| – ښوونکی دې د تدریس شوي لوست لنډیز ووایي او له مخې دې زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | – زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ ږدي او له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول او نوي معلومات:**

* کنوانسیون: Convention: تړون او معاهده چې په یوې غونډې کې (د دولتونو یا نادولتي موسسو تر منځ) یوې پرېکړې ته قانوني اړخ ورکوي او د برخوالو له خوا لاسلیک کیږي.

* اعلامیه: Declaration: د یوې موضوع په اړه د عمومي خبرونې په موخه د پرېکړې اعلان

* کنفرانس: Conference: د یوې ټاکلې موضوع په اړوند د رابلل شوو ګډون کوونکو ویناوې او خبرې اترې.

* ملت: Nation: د ګډ تاریخ، ژبې، فرهنګ او جغرافیایي پولو دننه تر یوه بیرغ لاندې راټول شوی ولس.

* تعدیل: Amendment: په قانون، پرېکړې، اساسنامې او سندونو کې د لازم او اړین سمون راوستل.

* اساسنامه: Regulation, Statutes, Charter

* دویمه نړیواله جګړه: Second World War

**اضافي معلومات:**

هر انسان ځانګړي حقونه لري چې الله تعالی ورکړي دي. انسان د خپل ژوندانه په ځینو ځانګړو وختونو کې خپل حقوق تر لاسه کړي نه دي او په نورو انسانانو ده چې د هغو د حقوقو د لاسته راوړلو لپاره کاروکړي او حقوق ورته ورکړل شي. انسان په ټولنه کې خپل طبیعي اومدني حقوق لري، که ورنه کړل شي په ټولنه کې ازادي، مینه، یووالی له منځه وړي

او په نتيجه کې زور زياتی رامنځته کيږي. له تاريخي څيړنو داسې جوتيږي چې علماوو او پوهانو په خپل وخت کې دداسې نظامونو غوښتنه کړې ده چې پکې د انسان اساسي حقوق تامين شي. د همدغه حقونو د ورکولو لپاره په نړۍ کې د بشري حقوقو سازمان رامنځته او په ټولو نړيوالو يې غږ کړی چې بايد د بشر حقوق خوندي او ورته ورکړل شي. خو که چيرې د بشري قوانينو تاريخ ته ځير شو، و به گورو چې د بشري حقونو په باره کې ددغه سازمان تر رامنځته کيدو د مخه ان د اسلام مبارک دين له پيل نه تر اوسه پورې د بشر حقونو ته درناوی شوی او مسلمانان يې په رعايتولو مکلف شوي دي. د اسلام په مبارک دين کې د بشر د حقونو په باره کې داسې ټکو ته پام اړول شوی دی چې لا تر اوسه د بشر د حقونو په برخه کې ددغه سازمان له خوا پام اړول شوی نه دی چې مورِ يې ډيرې بيلگې لرو:

– هلک او ښځينه ماشومانو ته دوه او دوه نيم کاله شېدې ورکول
– يوې ښځې ته د پلار په ملکيت او ميړه په ملکيت کې برخه ورکول
– تر زيږيدو دمخه د ماشوم ژوند او روغتيا ته پام اړول
– د ماشو م تر لوييدو پورې د ماشوم ژوند ته پا م اړول او مور ته يې طلاق نه ورکول

داسې ډيرې بيلگې لرو چې لا تر اوسه ورته پام شوی نه دی، د بشري حقونو Human Rights له کلمو سره زمونږ هيوادوال اوس اشنا شوي دي. ځينې د بشري حقوقو په باره کې ښه نظر لري او ځينې هيوادوال چې په هکله يې پوره معلومات نه لري. نو هميش وربانديې نيوکې کوي. هغوی په دې اند دي چې گڼې د بشري حقونواړونديې اداري د يو دولت د قانوني بهيرونو د سرته رسولو په برخه کې خنډونه رامنځته کوي. حال داچې د بشري حقونو سازمان يوازې د بشر د حقونو دفاع کوي.

د بشر د حقوقو اعلاميه چې په ۴۳ مادو کې په ۱۹۴۸کال کې د ۴۸ موافقو رايو په ورکولوسره تصويب شوه، د نړيوالو له خوا يې پلوي زياته شوه او د ميليونو خلکو غوښتنوته يې ځواب ووايه.

بيا وروسته د بشري حقوقو دري سندونه په ۱۹٦٦کال کې تصويب شول. دغه اسناد په لاندې ډول دي:

۱– د بشر د حقوقو نړيواله اعلاميه ۱۳۴۸
۲– د مدني اوسياسي حقوقو نړيوال کنوانسيون ۱۹٦٦
۳– د مدني او سياسي حقوقو د نړيوال کنوانسيون په ارتباط اختياري پروتوکول
۴– د اقتصادي، اجتماعي او فرهنگي حقوقو نړيوال کنوانسيون ۱۹٦٦
– په ۱۹۰۹کال کې د نوامبر په ۲۰ د ماشومانو د حقوقو نړيواله اعلاميه تصويب شوه.
– په ۱۹٦۵کال کې د هر ډول تبعيض د له منځه وړلو نړيوال تړون تصويب شو.
– د ۱۹٦٦کال د دسمبر په ۱٦ د سياسي او مدني حقوقو نړيوال تړون تصويب شو.

**اخځليک:**

ويژه اسناد بين المللي حقوق بشر، کنوانسيون حقوق بشر، سير تاريخي حقوق بشر، د بشري حقوقو د اداري رپوټ

# دوه ویشتم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | د مور دریځ | | د لوست موضوع |
| | زده‌کوونکي به ددې لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– د مور حقونه به وپېژني.<br>– په کور او ټولنه کې به د مور پر ارزښت او اهمیت پوه شي.<br>– له مور او پلار سره به یې د مینې لېوالتیا لا پسې زیاته شي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د خبرو کولو وړتیا به یې زیاته شي.<br>– د متن د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول ترسره کړي. | | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې |
| | لوستل، لیکل، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز او یوکسیز فعالیت | | د تدریس لارې |
| | درسي کتاب، تخته، تباشیر، تخته پاک، مارکر، کتابچه، پنسل، د لوست اړوند انځورونه | | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفا هي، لیکنې،ډلییز کار، لنډ ځوابونه او عملي کار | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ کنټرول، د کورني کارکتل، د تیر لوست ارزونه او د نوي او زاړه لوست ترمنځ اړیکې ټینګول | | د زده کړې او تدریس لومړي فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | ښوونکی د مور د مینې او عاطفې په اړه له زده‌کوونکو سره خبرې کوي او پر دې ټکي رڼا اچوی چې که یو ماشوم د مور له مینې او سیورې څخه بې برخې شي، د هغه یا هغې په رواني حالت او راتلونکي ژوند څه اغېز کوي. په دې ټوګه ورو، ورو اصلي لوست ته ننوزي. | | د انګېزې رامنځته کول |
| ۳۵ دقیقې | د زده‌کوونکو فعالیتونه | | د ښوونکي فعالیتونه |
| | –زده‌کوونکي په لومړنیو فعالیتونو کې برخه اخلي او د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. څو زده‌کوونکي د مور د مینې او عاطفې په اړه خبرې کوي او که د مور په اړه د کوم یوه کومه کیسه زده وي، نورو ته دې ووایي.<br>–زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او څو زده‌کوونکي په وار خپل نظرڅرګندوي.<br>–زده‌کوونکي د کتاب د لوست په پیل کې د راغلي حدیث شریف پر معنا او مفهوم ځانونه پوهوي او د هغې په اړه څو زده‌کوونکي په خپله ژبه خبرې کوي.<br>–زده‌کوونکي لوست له ځانه سره لولي او پر مفهوم یې | | –ښوونکی له لومړنیو فعالیتونو وروسته له زده‌کوونکو څخه په وار پوښتنه کوي چې د مور د مینې په اړه لنډې خبرې وکړي او که کومه کیسه یې زده کوي، نورو ته دې ووایي.<br>– ښوونکی د اولاد په روزنه کې د مور په ارزښت خبرې کوي او له زده‌کوونکو څخه د هغوی د نظر پوښتنه کوي.<br>–ښوونکی له څو زده‌کوونکو څخه ددې مبارک حدیث د مفهوم په اړه پوښتنه چې: «جنت د مور تر پښو لاندې دی.» |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست له ځانه سره ولولي او پر مفهوم يې ځانونه پوه کړي. | ځانونه پوهوي. که پر کومې برخې پوه نه شول له ښوونکي پوښتنه کوي. |
| – ښوونکی په وار څو زده‌کوونکي د ټولگي مخې ته راغواړي او د لوست يوه، يوه برخه پرې لولي. | – څو زده‌کوونکي په وار د لوست يوه، يوه برخه لولي. |
| – ښوونکی درې زده‌کوونکی په وار د ټولگي مخې ته راغواړي چې د مور د مينې، زړه سوي او د اولاد د روزنې په اړه لنډې خبرې وکړي. | – څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولگي مخې ته راځي او د مور د زړه سوي او د اولاد د روزنې په اړه لنډې خبرې کوي. |
| – ښوونکی څلور زده‌کوونکي د ټولگي مخې ته راغواړي، چې په وار له يو بل سره مرکه وکړي. | – څلور زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولگي مخې ته راځي او يو له بل سره د لوست په پای کې د شپږم فعاليت په څېر مرکه کوي. |
| – ښوونکی دې پر زده‌کوونکو د لوست د پای درېيم، څلورم او پنځم فعاليت سرته ورسوي. | – زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم فعاليتونه سرته رسوي. |
| – ښوونکی دې د لوست لنډيز ووايي او د لوست يوه برخه دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په توگه ورکړي چې په دري ژبه يې وژباړي. | زده‌کوونکي د لوست لنډيز ته غوږنيسي او له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي. |

**اضافي معلومات:**

نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: «څوک چې خپل پلار يا مور ته زيان رسوي، نو دوزخ ته به داخل شي.»

انس بن مالک رضی الله عنه فرمايلي دي، د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په وخت کې يو سړی د عقلمه په نامه، چې تل به يې د نيکو کارونو هڅه کوله او صدقه به يې ورکوله. د مرگ وخت يې راغی او ناروغ شو. مېرمن يې د ځانکندن پر مهال رسول الله صلی الله عليه وسلم ته احوال وليږه، چې ای د الله رسوله، زما خاوند د مرگ په حالت کې دی. زه تا د هغه په حال خبروم. نبي کريم صلی الله عليه وسلم خپلو صحابه ووته وويل، راځئ چې ورشو. کله چې ورننوتل، رسول اللهﷺ ورته وفرمايل: عقلمه څنگه يې؟ هغه خبرې ونه کړې. رسول اللهﷺ پوه شو چې کومه ستونزه يا گناه شته. نبي کريمﷺ ورته شهادت ووايه. بيا يې هم په شهادت ژبه ونه خوځيده. بيا يې تکرار کړه، بيا يې هم څه ونه ويل. رسول اللهﷺ پوه شو چې مسئله نوره هم لويه ده او د ده حالت ډېر سخت دی. نبي کريمﷺ وفرمايل: «دده پلار شته؟» ورته وويل شول: «پلار يې مړ شوی، خو بوډۍ او سپين سرې مور يې ژوندۍ ده.» مور يې راوغوښته. ورته ويې فرمايل: «د عقلمه مورې، عقلمه څرنگه سړی و؟» هغې وويل: «عقلمه روژې نيولې، حسنه يې ورکوله، لمونځ يې کاوه او ټولې ښېگڼې يې ترسره کولې، خو زه ترې ناراضه يم، ځکه خپلې ښځې ته يې پرما غوره والی ورکاوه.» رسول اللهﷺ ورته وفرمايل: «ببښنه ورته وکړه.» هغې وويل: «زه يې ډېره ځورولې يم، نه يې ببښم.» رسول اللهﷺ خپلو صحابه وو ته وفرمايل، ولاړ شئ او خس او لرگي راټول کړئ، په اور کې يې سوځوم. مور يې وويل: «يا رسول اللهﷺ، زما له زوی او د زړه له ټوکړې سره دا کار مه کوه.» نبي کريمﷺ ورته وويل: «د الله ﷻ عذاب له دې اور څخه سخت دی. الله تعالی ستاله رضا پرته په بل څه نه رضا کېږي. د ده لمونځ يا روژه نه قبلوي. څو ته پرې غوسه يې.» د عقلمه مور وويل: «زه اللهﷻ شاهد گنم چې ما ورته ببښنه وکړه.»

له معاويه بن صيدهؓ څخه روايت دی، وايي ما وويل: «يا رسول اللهﷺ، څوک د زياتې نيکۍ کولو مستحق دی؟» راته يې وفرمايل: «مور» بيا مې ورڅخه وپوښتل: «د ډېرې نيکۍ مستحق څوک دی؟» بيا يې راته وويل: «مور ده. په څلورم ځل

يې راته وويل، پلار او بيا نور نږدې دوستان دي.»

حضرت محمدﷺ ته يو صحابي وويل، اى د الله پيغمبره، د مرغۍ بچي مې ونيول او په څادر کې مې واچول. کله يې چې د مور سترګې پرې ولګيدې، راټوپ يې کړ او پر خپلو بچو راپرېوته. دا مې هم ورسره ونيوله.» حضرت محمدﷺ ورته وفرمايل: «ايا ته ددې مرغۍ له محبته حيران يې؟ الله ﷻ له خپل بنده سره د اوياوو مورګانو مينه لري.»

له حضرت عطاءرضي الله عنه څخه روايت دى چې يو سړى ابن عباسرضي الله عنه ته راغى، ورته يې وويل: يوې ښځې ته مې د نکاح وويل، خو هغې انکار وکړ. بل سړي ورته د نکاح وړانديز وکړ، هغه يې قبول کړ. ما ته يې زور راکړ، هغه مې ووژله، نو ايا توبه کولاى شم؟ هغه ورته وويل، مور دې ژوندۍ ده؟ ويې ويل، نه. بيا يې ورته وويل، الله ﷻ ته توبه وکړه او څومره چې کولاى شې، ورته ځان نږدې کړه.

**اخځليک:**

د احاديثو ژباړه

## درویشتم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | محاوره (جومات او ښوونځی) | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– پر دې به پوه شي چې جوماتونه او ښوونځي د زده کړې مرکزونه دي.<br>– په جوماتونو کې به د دوديزو زده کړو په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>– په افغانستان کې به د زده کړې بهير وپېژني.<br>– په پښتو ژبه به يې د ليک او وينا ژبه پياوړې شي.<br>– د خبرو کولو وس به ومومي.<br>– د متن د پای فعاليتونه به په خپلواک ډول ترسره کړي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، ليکل، خبرې، مرکې، پوښتنې او ځوابونه او ډله ييز او يو کسيز فعاليت | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، تخته، تباشير، کتابچه، د جومات او د ښوونځي عکسونه | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي، ليکني، ډلييز، لنډ ځوابونه پوښتنې او عملي کار | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ کنترول، د کورنۍ دندې ليدل، د تېر لوست ارزونه او د نوي او زاړه لوست د اړيکو ټينګول | ۴دقيقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی د تېر لوست کورنۍ دنده ګوري، يو تن زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته رابلي چې خپله ژباړه نورو ته واوروي. ښوونکی پکې لازم سمون راولي او ټول زده‌کوونکي هغه له ځانه سره ليکي. وروسته د زده کړو په ارزښت خبرې کوي او په هېواد کې د هغې پر تاريخي بهير رڼا اچوي. په دې ټول فعاليت کې زده‌کوونکي په خپلو خبرو کې شريکوي. | ٦دقيقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵دقيقې |
| ــ ښوونکی له لومړنيو فعاليتونو څخه وروسته د لوست له اصلي موخې سره سم پر لوست پيل کوي. څنګه چې دا لوست زياتره پر مرکو څرخي، نو ښوونکی لومړی په ګران هېواد کې د زده کړې تاريخي بهير بيانوي، دوديزه زده کړه او رسمي زده کړه ورپېژني، بېلګې يې وړاندې کوي، د رسمي زده کړو د پيل په اړه معلومات ورکوي، له زده‌کوونکو څخه څو پوښتنې کوي، د کتاب لوست وربانددې لولي، د لوست د وروستي فعاليت لومړی او دويمه شمېره فعاليت دې پرې سرته ورسوي او په پای کې دې پر | – زده‌کوونکي په لومړنيو فعاليتونو کې برخه اخلي، خپلې کورنۍ دندې مخې ته ږدي، د ښوونکي له لارښوونې سره يو تن خپله ژباړه نورو ته اوروي او له لازم سمون وروسته يې نور زده‌کوونکي له ځانه سره ليکي.<br>– زده‌کوونکي په هېواد کې د زده کړې پر لنډې تاريخچې ځانونه پوهوي، دوديزې زده کړې او رسمي زده کړې پېژني، او هڅه کوي بېلګې يې وړاندې کړي.<br>– زده‌کوونکي د کتاب لوست لولي. ځانونه پرې پوهوي.<br>– وروسته څو زده‌کوونکي د لوست يوه، يوه برخه د نورو په وړاندې لولي. | |

| | |
|---|---|
| دوو، دوو زده‌کوونکو په وار سره د کتاب مرکـــه او هغې ته ورته نورې مرکې ســـرته ورســـوي، ډاډ دې ترلاسه کړي چې زده‌کوونکي په خبرو کـــې زيـــاتې ستونزې نه لري او د اړتيا په صورت کې ورسره لازمه مرسته کوي. وروسته د معمول پر خـــلاف يـــو، دوه زده‌کوونکي راغواړي چې د لوست لنډيز په خپله ژبـــه ووايي. د درسي ساعت په پای کې د زده‌کوونکو لنډه ارزونه کوي او کورنۍ دنده ورکوي. | – دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او د لوست د پای د لومړي فعاليت له مخې يو له بله پوښتنې کوي او سم ځوابونه اوري. دا لړۍ په څو زده‌کوونکو تکراريږي.<br>– وروسته زده‌کوونکي د لوست د پای د دويم فعاليت له مخـــې د خپلو زده کړو په اړه خبرې کوي.<br>زده‌کوونکي د ارزونې په موخه د ښوونکي پوښتنو تـــه ځـــواب وايي او کورنۍ دنده اخلي. |

**اضافي معلومات:**

جومات د مدرسې پُل او ښوونځی د پوهنتون پُل دی. څو کاله د مخه زموږ د هيواد ډيرو هلکانو او نجونو پـــه جومـــاتونو کې له ملا امامانو څخه ديني کتابونه لوستل دا ځکه چې له يوې خوا زموږ د هيواد وګړي مسلمانان دي او له بلـــې خـــوا زموږ په ډيرو ولايتونو، ولسواليو، سيمو او بانډو کې ښوونځي نه وو.

هغه چا، چې په مسجد کې ديني زده کړې کړي دي، د هغه په دنيايي او ټولنيزو چارو کې هر خواځليدلي، د نيک نـــوم او ستر شخصيت څښتن شوي دي. زموږ په ټاټوبي کې د داسې کسانو بيلګې خورا ډيرې زياتې دي. د يو څو تنو نومونه پـــه لاندې ډول دي:

سيد جمال الدين افغان، وزيرمحمدګل خان مومند، غازي محمدجان خان وردګ، جنرال سيدحسن خان حســـن، مولـــوي صالح محمد هوتک، علامه عبدالحی حبيبي، عبدالرووف بېنوا، مولانا قيام الدين خادم، پوهاند صديق الله رښتين، ګل پاچـــا الفت، استاد محمدانور نوميالی، عبدالله خدمتګار بختانی او نور.

ښوونځی د جومات ترڅنګه زموږ د وطن لوښې او زامن له عصري او ساينسي علومو سره بلدوي. هلکانو او نجونو ته ليک لوست، سيمه ييزې او نړيوالې ژبې، ادبيات، تاريخ، جغرافيه، کيميا، بيولوژي، هندسه، مثلثات، فزيک، رياضـــي، الجبـــر، ژيولوژي، ټولنپوهنه، اخلاق، سياست، کمپيوټر، انټرنټ او معاصره تکنالوژي ور زده کوي.

ځينې هلکان له ښوونځي څخه دمخه په جوماتونو کې لومړنۍ ديني زده کړې ترسره کوي. کله چې په ښوونځي کې شامل شي، د ښوونځي کتابونه او درسونه ډير ښه زده کوي. داسې هلکان او نجونې پخپلـــو ټولګيـــو کـــې هرځـــای ممتـــاز زده‌کوونکي وي، دوی په پرله پسې ډول اول نمره وي کله چې له دولسم ټولګي څخه فارغ شي، د کانکور د ازموينې لـــه مخې د هيواد په پوهنتونونو کې د خپلې خوښې پوهنځيو، لکه: طب، انجينري، حقـــوق، فارمســـي، زراعـــت، ســـاينس، شرعيات، ادبيات، ژورناليزم، پوليتخنيک، وترنري، ټولنيزو علومو، ښکلو هنرونو او نورو ته بريالي کيږي. همـــدا ممتـــاز زده‌کوونکي د خپل استعداد، زيار او زده کړې په پايله کې د ګران افغانستان د څانګيزو زده کړو لرونکي فعال کادرونـــه کيږي.

کله چې څوک د جومات (مدرسې او ښوونځي) زده کړې ترسره کړي هغه د هوسا، سر لوړي او ارام ژوند څښتن کيږي او پوهه حاصلوي. د ښه شخصيت لرونکي ورڅخه جوړيږي، د لوړ شهرت او نيک نوم خاوندان ګرځـــي. پـــه ملـــت او دولت کې ښه ابرومند کيږي، خلکو او هيواد ته دښه خدمت جوګه کيږي.

# څلورويشتم لوست

## د تدريس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | پښتو قاموسونه | | |
| د زده کړې موخې، مهارتي او ذهنيتي موخې | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– پښتو قاموسونه به وپيژني.<br>– د قاموس د کارولو په ګټو او لارو چارو به پوه شي.<br>– د ژبې د قاموسونو اړتيا به ورته څرګنده شي.<br>– د ليک او وينا ژبه به يې پياوړې شي.<br>– په پښتو کې به يې د خبروکولو وړتيا ځواکمنه شي.<br>– د لوست د پای فعاليتونه به په يوازې سره ځواب کړی شي. | | |
| د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډلييز او يوکسيز فعاليت | | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، تخته، تباشير، تخته پاک، قلم او کتابچه او د امکان په صورت کې کوم پښتو قاموس | | |
| د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه، لوستل، ليکل، د ډله ييز کار څارل او د ښوونکي د يادداشت کتابچه | | |
| د زده کړې او تدريس لومړي فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورني کار ليدل، د تير لوست ارزونه او له نوي لوست سره يې اړيکې ټينګول | | ۴دقيقې |
| د انګيزې رامنځته کول | ښوونکی په ژبه کې د قاموسونو پر اهميت او ارزښت رڼا اچوي او له زده‌کوونکو غواړي په دې اړه خپلې تجربې له نورو سره شريکې کړي. ښوونکی له همدې فرصت څخه په ګټې اخيستنې نوی لوست پيلوي. | | ٦دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | | د زده‌کوونکو فعاليتونه | ۳۵دقيقې |
| – ښوونکی له زده‌کوونکو څخه د ژبې د فرهنګ يا قاموس د کارولو په اړه پوښتنه کوي.<br>– ښوونکی له زده‌کوونکو پوښتنه کوي، سربيره پر دې چې په قاموسونو کې د يوې ژبې د سختو کلمو او لغتونو معناګانې موندل نوره څه ګټه لري؟<br>– ښوونکی زده‌کوونکو ته د قاموسونو د ډولونو په اړه رڼا اچوي.<br>– ښوونکی زده‌کوونکو ته وايي چې لوست د کتاب له مخې له ځانه سره ولولي.<br>– ښوونکی څو زده‌کوونکو ته وايي چې د لوست يوه يوه برخه ولولي.<br>– ښوونکی درې زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې په وار سره د پښتو قاموسونو نمونه واخلي.<br>– ښوونکی دې يو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته | | – زده‌کوونکي په وار د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي چې قاموس څه شی دی او د څه شي لپاره پکاريږي.<br>– زده‌کوونکي په يوه قاموس کې د تر پام لاندې کلمې د معنا له لټولو پرته د قاموس په بل مهم ارزښت خبرې کوي، چې هغه د يوې ژبې د ټولو کلمو او لغاتو زېرمه او ټولګه ده.<br>– زده‌کوونکي د قاموسونو پر ډولونو ځانونه پوهوي او بېلګې يې پيدا کوي.<br>– زده‌کوونکي د کتاب لوست له ځانه سره لولي او پر مفهوم يې ځانونه پوهوي.<br>– څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د کتاب له مخې لوست لولي.<br>– درې زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخې ته راځي او په وار سره د پښتو قاموسونو نمونه | |

| | |
|---|---|
| راوغواړي چې د قاموس پر ارزښت او اهمیت خبرې وکړي.<br>– ښوونکی دې درې زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د لوست د پای د دریم فعالیت په ځېر محاوره وکړي.<br>– ښوونکی دې د لوست د پای څلورم فعالیت پر دوو زده‌کوونکو عملي کړي.<br>– ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د لوست د پای پنځم فعالیت سرته ورسوي.<br>– ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د ټولګی مخې ته راوغواړي چې یو د خپل ولایت او بل د خپلې ولسوالۍ په اړه معلومات وړاندې کړي.<br>– ښوونکی دې په پای کې د لوست لنډیز ووایي او له ارزولو وروسته دې کورنۍ دنده ورکړي. | اخلي.<br>– یو زده‌کوونکی د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي او د قاموسونو پر ارزښت خبرې کوي.<br>– درې زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونو سره سم د لوست د پای دریم فعالیت سرته رسوي.<br>– دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او یو له بل څخه د څلورم فعالیت په ځېر پوښتنه کوي او بل ځواب ورکوي.<br>– دوه زده‌کوونکي د ښوونکي په خوښه د ټولګي مخې ته راځي، لومړی خان معرفي کوي او بیا د پښتو قاموسونو په اړه خبرې کوي.<br>– دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي، یو خپل ولایت او بل د خپلې ولسوالۍ په اړه خبرې کوي. (موقعیت، د وګړو شمېر، د ښوونځیو شمېر، لیسې او منځنۍ ښوونځي، کرنه، صنعت، د خلکو کسب او دنده، اوبه، چاپېریال او داسې نور.)<br>– زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي، ځانونه پوهوي، پوښتنو ته ځواب وایي او کورنۍ دنده اخلي. |

**اضافي معلومات:**

هره ژبه د خپلو کلمو د ښه وضاحت لپاره بېلا بېلو قاموسونو ته اړتیا لري. موږ پښتو ژبه کې تر دې مهاله یو شمیر قاموسونه، لکه: ریاض المحبت، پښتو سیند، اردو قاموس، افغان قاموس، پښتو قاموس، پښتو ـ دری لنډ قاموس، پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس، پښتو انګریزي قاموس، انګریزي پښتو قاموس، پښتو دری قاموس، دری ـ پښتو قاموس، د سیاسي اصطلاحاتو قاموس... لرو. پښتو ژبه ځینو مسلکي قاموسونو ته اړتیا لري، چې دا مهال په ژبه کې نشته، لکه؛ تخنیکي قاموس، پوځي قاموس، دیني قاموس، د فولکلور قاموس، د کرنې او مالدارۍ قاموس، طبي قاموس، علمي قاموس، ادبي قاموس، کمپیوټري قاموس، ژورنالستیکي قاموس، پښتو ـ عربي قاموس.

قاموسونه باید کوچني (جیبي) اوسي، منځنۍ روش، غټ (سرمیزي) یو ټوکیز او څو ټوکیز هم وي. د زده‌کوونکو لپاره بیل د محصلینو لپاره بیل، د بهرنیانو لپاره جلا قاموسونه پکار دي. قاموس په حقیقت کې د یوې ژبې د زیرمې کلي ده.

پښتو– پښتو تشریحي قاموس نسبتا یو مکمل قاموس دی. په نوموړو ټوکونو کې د پښتو ژبې پنځه پنځوس زره لغتونه راټول شوي دي. لغتونه د زمانې په تیریدو سره هیریږي او مري. پښتو ژبه زموږ د نیکونو ملي امانت دی، ددې ژبې د ټولو لغتونو ساتنه د قاموسونو په ذریعه ممکنه ده.

په پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس باندې (۲۲) پښتو ژبو عالمانو کار کړی دی. ددې قاموس په لیکلو کې له پښتو قاموسونو، دري قاموسونو، انګلیسي قاموسونو او روسي قاموسونو څخه ګټه اخیستل شوي ده. په عمومي ډول ددې قاموس په چمتووالي کې (۷۸) بیلابیل قاموسونه کارول شوي دي.

**اخځلیکونه:**

پښتو – پښتو تشریحي قاموس

روسي – پښتو قاموس

انګریزي– پښتو قاموس

## پنځه ویشتم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | د ژبې د زده کړې اهمیت (خبرې اترې) | | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د ژبې د زده کړې پر ارزښت به پوه شي.<br>– په سم ډول به له غلطۍ پرته په پښتو ژبه خبرې وکړي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– دمتن وروستي فعالیتونه به په خپلواک ډول ترسره کړای شي. | | |
| د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز او یو کسیز کارونه | | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، تخته، تباشیر او تخته پاک | | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار، ډله ییز کار، ځارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل | | |
| د زده کړې او تدریس لومړي فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخیستل، د کورنۍ کار کنترول، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره تړ اوورکول | | ۴دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی ددې وینا پر بنسټ: د چا، چې یوه ژبه زده وي، یو تن دی او چې دوه یې زده کوي، دوه تنه دي، د زده‌کوونکو پام د ژبې د زده کړې اهمیت ته راګرځوي او د ښېلګو په راوړلو پر لوست پیل کوي. | | ۶دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۵دقیقې |
| ښوونکی دې د مفاهمې پر ښېلابېلو وسیلو، لکــه د لاسونو او سر د اشارو، ښښو او سګنالونو، انځورونـــو او نورو د بیانولو له لارې د ژبې تعریف وړاندې کړي، (د ګونګیانو ژبه، ترافیکي سګنالونه او نورې ښښې.) | | – زده‌کوونکي دې له ښوونکي سره په بحث کې برخه واخلي، د ګونګیانو اشارې، ترافیکي سګنالونه، د الوتونکـــو چغهـــار، د ځارویو رمبارې او داسې نورو غږونو ته دې سوچ وکـــړي چـــې هره ډله یې په خپلو کې د پوهولو او پوهېدلو لپاره کاروي. | |
| ښوونکی دې د ژبې د ارزښت په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکړي او په ســـم پوهـــاوي او ناســـم پوهاوي کې دې د ژبې پر نقش خبرې وکړي او و دې وایي چې د ناسم پوهاوي یا سوء تفاهم پړه زیاتره پـــر څه شي اچول کیږي او ولې؟ | | – زده‌کوونکي د ژبې پر ارزښت ځانونه پوهوي، د پوهې او علم د حاصلولو لپاره د ژبې زده کړې ته پام کوي، د سم پوهېـــدو او سم پوهولو ارزښت پېژني او د ژبې د کارولو پر مهال د نـــاوړه تفاهم د رامنځته کېدو مخه نیسي. | |
| ښوونکی دې زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړي چـــې لوست د کتاب له مخې له ځانه سره ولولي. | | – زده‌کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم لوســـت د کتاب له مخې ولولي.<br>– څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د لوســـت | |

| | |
|---|---|
| ښوونکی دې دریو زده‌کوونکو دنده ورکړي چې د لوست یوه، یوه برخه د نورو په وړاندې ولولي. | یوه یوه برخه ولولي. |
| ښوونکی دې زده‌کوونکو ته ووایي چې د خبرو اترو برخه ولولي او ځانونه دوه کسیزو مرکو ته چمتو کړي. | – زده‌کوونکي د مرکو برخه لولي او د ښوونکي له لارښوونو سره سم د مرکې لپاره ځانونه چمتو کوي. |
| ښوونکی دې په وار سره پر زده‌کوونکو په لوست کې راغلې مرکې سرته ورسوي. | – دوه، دوه زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي په وړاندې مرکه کوي. |
| ښوونکی دې دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راوبولي چې په لوست کې راغلې کیسه په خپله ژبه ووایي. | – دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او په لوست کې راغلې کیسه په خپل ژبه وکړي. |
| ښوونکی دې څو زده‌کوونکو ته دنده ورکړي، چې ځانونه د پنځم فعالیت له راوړل شوې بېلګې سره سم نورو ته ورو پېژني. | – څو زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځی او ځانونه نورو ته په مفصل ډول ورپېژني. |
| ښوونکی دې زده‌کوونکي په څو مناسبو ډلو وویشي. وروسته دې ورته یو لنډ ښکلی نثر ولولي او زده‌کوونکو ته دې ووایي غوږ ورته ونیسي. بیا دې ورته ووایي چې متن په خپله ژبه ولیکي. هره ډله دې لیکل شوی نثر په خپلو کې وګوري، سم دې کړي او یو دې د نورو په استازیتوب ولولي. | – زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم په مناسبو ډلو کې تنظیمیږي، ښوونکي ته په ځیر غوږ نیسي او وروسته اوریدل شوی نثر په خپل ژبه لیکي. د ډلې استازی یې سمه بڼه نورو ته اوروي. |
| ښوونکی دې د ژبې د زده کړې پر اهمیت یو وار بیا ټینګار وکړي، د لوست لنډیز دې ووایي، د څو پوښتنو له لارې دې زده‌کوونکي وارزوي او په پای کې دې کورنۍ دنده ورکړي. | – زده‌کوونکي د ژبې د زده کړې پر اهمیت ارزښت ځانونه پوهوي، د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي، د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او کورنۍ دنده اخلي. |

**اضافي معلومات:**

**د ژبې د زده کړې اهمیت**

انسانان په ژوندکې یو د بل مرستو ته اړ دي او د نورو له همکارۍ پرته په یوازې توګه خپل کارونه تر سره کولای نشي. کله چې یوبل ته لاس ورکوي، نو د هغه پوهول د ژبې پواسطه کیږي. که چیرې هغه ژبه زده نه کړي ،همکاري هم ترې غوښتلی نشي او هغه پرې پوهولی هم نشي. له دې امله په کار دي چې د نورو ژبو په زده کړه لاس پورې کړي چې خپلې ستونزې حل او سرته ورسوي.

کله چې د یو انسان یوه ژبه زده وي، د یو کس او که دوه ژبې یې زده وي، د دوو کسو که هر څومره ژبې یې یادې وي، د هماغومره خلکو نمایندګي کولای شي. که د چا یوازې یوه ژبه زده وي، د هماغه یوې ژبې له ویونکو سره مرسته کولې شي، د هغوی نظر یې راټولولي شي، یوازې همغه په خپل نظر پوهولای شي او د خپل ژوند په اړه د هماغه یوې ژبې له معلوماتو څخه د ژوند په سمون کې کار اخیستلای شي. په همدې ډول کله چې یو انسان خپل ژوند په زړه پورې کړي، د نورو د ژوند په سمون کې هم برخه اخلي او په دې توګه د ټولې ټولنې د ګډونوالو ژوند ته پرمختګ اوسمون ورکوي او پر ځان باوري او متکي ټولنه رامنځ ته کیږي.

## شپږویشتم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|---|
| | سکندرخان خټک | | د لوست موضوع |
| | زده‌کوونکي به د لوست په پای کې په لاندې موخو پوه شي:<br>– سکندرخان خټک به د پښتو ژبې د یوه لیکوال په توګه وپیژني.<br>– د سکندرخان خټک له لیکنو سره به بلدشي.<br>– په سم ډول به له غلطۍ پرته په پښتو ژبه خبرې وکړي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– دمتن وروستي فعالیتونه به په خپلواک ډول ترسره کړای شي. | | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې |
| | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز او یو کسیزکار | | د تدریس لارې |
| | درسي کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، کتابچه او پنسل او د لوست اړوند انځور | | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفا هي، لیکنې، ګروپي کار، لنډ ځوابونه، پوښتنې او عملي کار | | د ارزونې لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتل، د زاړه لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول. | | د زده کړې او تدریس لومړني فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | ښوونکی په ټولنه کې د شاعر او لیکوال پر ارزښت خبرې کوي، د یوې ټولنې د لارښوونکي په توګه د هغوی اهمیت څرګندوي. له زده‌کوونکو پوښتنه کوي چې کوم، کوم پښتانه شاعران او لیکوال پېژني او په دې توګه نوي لوست ته لاره هواروي. | | د انګېزې رامنځته کول |
| ۳۵ دقیقې | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | |
| ـ زده‌کوونکي پر دې ټکي ځانونه پوهوي چې شاعران او لیکوال په ټولنه کې څه دریځ لري او ولې یې دا دریځ تر لاسه کړی دی. بیا دې ټکي ته پام کوي، چې که شاعر، لیکوال او رسنۍ نه وي، د ټولنې ستونزې به څنګه هوارې شي.<br>ـ زده‌کوونکي نوی لوست لولي او د سکندرخان خټک پر ژوندلیک او اثارو ځانونه پوهوي.<br><br>ـ زده‌کوونکي ښوونکي ته غوږ نیسي او د شعر پر معنا او مفهوم ځانونه پوهوي.<br>ـ دوه زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخې ته راځي او د لوست د پای دویم فعالیت له مخې عمل کوي.<br>ـ یو زده‌کوونکی د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخې ته | | ـ ښوونکی په یوې ټولنې کې د شاعرانو او لیکوالو پر دریځ خبرې کوي، د ټولنې دوګړو په ویښتابه کې د هغوی ارزښت او اهمیت ته د زده‌کوونکو پام اړوي او په دې توګه نوي لوست ته ننوزي.<br>ـ ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوی لوست له ځانه سره ولولي او بیا څو زده‌کوونکو ته وایي چې د لوست یوه یوه برخه د ټولګي په وړاندې ولولي.<br>ـ ښوونکی په لوست کې راغلی شعر تشریح کوي او زده‌کوونکي یې پر مفهوم پوهوي.<br>ـ ښوونکی دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او د لوست د پای دویم فعالیت پرې عملي کوي.<br>ـ ښوونکی دې یو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته | |

| | |
|---|---|
| راوغواړي او ورته دې ووايي چې د لوست په اړوند له نورو زده‌کوونکو څخه لنډې پوښتنې وکړي، که ځواب سم نه و، پخپله زده‌کوونکی دې سم ځواب ورکړي.(د فعالیت شپږمه شمېره) ښوونکي د اړتیا په صورت کې مرسته کوي.<br>ــ ښوونکی دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي، چې لومړی زده‌کوونکی بل زده‌کوونکی معرفي کړي. بیا دې یو بل زده‌کوونکی یوه جمله په پښتو ووایي او بل دې په دري ژبه واړوي.<br>ــ ښوونکی دوه زده‌کوونکي راغواړي چې د لوست لنډیز نورو ته ووایي.<br>ــ ښوونکی د څو پوښتنو له لارې لوست ارزوي او زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | راځي، د لوست د پای شپږم فعالیت له مخې له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي. د ناسم ځواب په صورت کې سم ورکوي او که اړتیا وه له ښوونکی څخه مرسته غواړي.<br>ــ دوه زده‌کوونکي د ښوونکی په خوښه د ټولګي مخې ته راځي. خپل انډیوال په مفصله توګه نورو هم ټولګیوالو ته معرفي کوي او له لارښوونې سره سم یو زده‌کوونکی یوه جمله په پښتو وایي او بل یې په دري ژبه اړوي.<br>ــ دوه زده‌کوونکي په وار د لوست لنډیز وایي، نور ټولګیوال د ښوونکي پوښتو ته ځوابونه وایي او کورنۍ دنده اخلي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**یو کاشوک اوګره بهتره له غه آش چې په منت دی**

یوه کاچوغه وریجې (هغه غټې پخې شوې سپینې وریجې چې له شړومبې سره ګډې شوې وي.) له هغه آش څخه غوره دي چې په منت لاسته راغلی وي.

**ورکړه توره مو ځایي ده:** یعنې سخا او زړورتوب (شجاعت) مو په طبیعت او خټه کې ګډ شوی دی.

**اضافي معلومات:**

په پښتو ادبیاتو کې خوشحال خان او دده کورنۍ ځانګړی ځای لري. هغوی پښتو ژبې ته ډېر خدمتونه کړي. په پښتو کې یې د نثر لیکنې نوې لاره رامنځته کړه او د پیر روښان د مسجع نثر پر ځای یې وکاراوو. د خوشحال خان په کورنۍ کې د هغه زامنو او لمسیانو د هغه په پل پښه کېښوده او هغه یې لاپسې غښتلی کړ. سکندرخان د خوشحال خان په کورنۍ او زامنو کې له اشرف خان او عبدالقادرخان څخه وروسته یو غښتلی او منلی شاعرګڼل کیږي. د افضل خان په نظر سکندرخان په ۱۰٦۵ هـ زیږیدلی، خو په ځینو لیکونو کی یې د زیږیدو نیټه ۱۰٦۸ هـ ښودل شوې ده ،کوم وخت چې خوشحال خان په ۱۰۸۵ کال تیرا ته تللی، سکندر خان د ۱۷ کلونو زلمی او د خپل پلار کلک ملاتړی و. د سکندرخان د شاعرۍ پسرلی په ۱۰۹۰ هـ کال په غوړیدو راغلی او په همدغه کال کې یې خپل دیوان او د لیلی مجنون مثنوي لیکلې ده ،لکه چې وایي:

ما خپل عمر د شل دووکالو حساب کړ      چې تمام مې د لیلی مجنون کتاب کړ

د سکند په دیوان کې هر ډول مضامین، لکه عشق، مینه او محبت، اخلاق، تصوف، سیاست، فولکلور، ویاړنې، غندنې، ستاینه او نور په ښه ادبي رنګ بیان شوي دي. د سکندرخان د لیلی مجنون یوه قلمي نسخه د ډهلي په موزیم کې خوندي ده. مهر او مشتري د محمد بن احمد العطار تبریزي هغه اثر نظم دی چې سکندرخان په پنځه زره بیتونوکې په پښتو نظم اړولی دی.

**اخځلیک:**

د پښتو ادبیاتو تاریخ، منځنۍ دوره، ډاکتر زیورالدین زیور

## اووه ويشتم لوست

## د تدريس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | دقيقې |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | سوله | |
| د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پا ی کې به زده‌کوونکي لاند ې موخې تر لاسه کړي:<br>– د سولې پر معنا، مفهوم او ارزښت به پوه شي.<br>– له سولې سره مينه او له جګړې به يې کرکه پياوړې شي.<br>– د سولې اړتيا به درک کړي.<br>– په سم ډول به له غلطۍ پرته په پښتو ژبه خبرې وکړي.<br>– د ليک او وينا ژبه به يې پياوړې شي.<br>– د لوست د پای فعاليتونه به په خپلواک ډول ځواب کړي. | |
| د تدريس لار ې | لوستل، ليکل، اوريد ل، پوښتنې، ځواب او ډله ييز کار | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، کتابچه، تخته او تباشير | |
| د ارزونې لارې | شفاهي پوښتنې، څارنه او د ښوونکي د يادداشت کتابچه. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام ، روغبړ، د کورني کار ليدل او د تېر لوست ارزونه | ٦دقيقې |
| د انګيزې رامنځته کول | – ايا تاسو له چاسره له زړه بدوالي وروسته روغه کړې؟<br>– روغه جوړه، پخلاينه او سوله څنګه کلمې دي؟<br>– د سولې ارزښت په کوم وخت کې سړي ته څرګنديږي؟ | ۴دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی متن لولي.<br>– ښوونکی د سولې د ارزښت او اړتيا په اړه له زده‌کوونکو سره خبرې کوي. د سولې پر ګټو او د جګړې پر تاوان او زيانونو زده‌کوونکي پوهوي. زده‌کوونکو ته وايي چې په جګړې کې هر راز معنوي او مادي شتمني له منځه ځي.<br>– ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې متن له ځان سره ولولي او پر مفهوم يې فکر وکړي.<br>– ښوونکي يو څو زده‌کوونکو ته وايي چې يو، يو پراګراف ولولي. ښوونکي د هغوی نيمګړتياوې سموي. | – زده‌کوونکي د نوي لوست متن ته غوږ نيسي.<br>– زده‌کوونکي غوږ نيسي چې د سولې ګټې کومې دي او جګړه څه تاوان لري. له ښوونکي سره دې ځان د نظر په وړاندې کولو سره شريک کړي.<br>– زده‌کوونکي متن له ځا ن سره لولي او پر مفهوم يې ځانونه پوهوي.<br>– څو زده‌کوونکې د نوبت له مخې يو، يو پراګراف لولي او د ښوونکي لارښوونو ته غوږ نيسي.<br>– څو زده‌کوونکي په وار سره د ټولګي مخې ته راځي او د | |

| | |
|---|---|
| - ښوونکی څو زده‌کوونکي په وار سره د ټولګي مخې ته رابولي چې د سولې د ګټو او د جګړو پر زیانونو یو، دوه دقیقې خبرې وکړي.<br>- ښوونکي دوه زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې راغواړي چې د سولې او جګړې په اړه یو له بل سره مرکه وکړي.<br>- ښوونکی په لوست کې راغلی شعر په خوږه ژبه لولي او معنا او مفهوم یې زده‌کوونکو ته بیانوي. | سولې د ګټواو د جګړې پر زیانونو خبرې کوي.<br>- دوه، دوه زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته راځي اود سولې او جګړې په اړه په خپلوکې خبرې کوي. په موضوع باند ې په خپلو ډلو کې خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي ښوونکي ته غوږ نیسي او د شعر پر معنا اومفهوم ځانونه پوهوي. |
| - ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ډلو ویشي او دنده ورکوي چې د لاندې موضوع په اړه په خپلو کې خبرې وکړي او په پای کې د هرې ډلې استازی د خپلې ډلې نظر نورو ته څرګندوي: "څنګه کولای شو د خلکو په ذ هنونو کې د سولې ساتنې اصل وروزو؟"<br>- ښوونکی د پښتو یو لنډ متن زده‌کوونکو ته ورکوي چې په درې ژبه یې وژباړي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته وایي چې په کور کلي کې راولاړې شوې لانجې څنګه هواروي. | - زده‌کوونکي په ډلو تقسیمېږي اود ورکړل شوې موضوع په اړه پخپلو کې خبرې کوي. بیا د هرې ډلې استازی د خپلې ډلې نظر د ټولګي په وړاندې نورو زده‌کوونکو ته بیانوي. ټول زده‌کوونکي کولای شي د ډلو له استازو څخه خپلې پوښتنې وکړي.<br>- زده‌کوونکي پښتو متن پر دري ژباړي، له یو بل سره مقابله کوي او په پای کې سمه ژباړه نورو ته لولي.<br>- زده‌کوونکي د خپلو شخصي تجربو له مخې د کور او کلي د خلکو تر منځ د (پولې، پټي، د اوبو لګولو، ګاونډیانو...) اختلافاتو د هوارېدو پر لاروچاروخبرې کوي. |
| - ښوونکي متن په لنډوخبرو تکراروي او د پوښتنو له لارې ارزوي چې د لوست پوهنیزې، مهارتي او ذهیتي موخې لاس ته راغلي او که نه؟ | - زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او ګوري چې د سولې د ګټو او د جګړې د بدمرغیو په اړه یې په پوهه او وینا کې څومره بدلون راغلی دی. |
| - ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده سپاري چې د سولې د ارزښت او د جګړې د زیانونو په اړه یوه ښکلې مقاله ولیکي او په بله ورځ یې په ټولګي کې ولولي. | - زده کووني د ښوونکي له لارښوونې سره سم د سولې د ارزښت او د جګړې د زیانونو په اړه په کورونو کې یوه ښکلې مقاله لیکي او په بله ورځ یې د پښتو مضمون په ساعت کې د نورو په وړاندې لولي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

دا متل دې زده‌کوونکو ته وویل شي:

"که زه وایم چې زه یم او ته وایې چې زه یم؛ نه به زه یم، نه به ته یې.

خو که زه وایم چې ته یې او ته وایې چې ته یې؛ هم به زه یم؛ هم به ته یې."

د دې متل موخه وحدت دی. په ځانځانۍ کې سړی تباه کېږي او په یووالي او وحدت کې سړی سوکاله او هوسا کېږي.

جګړه د هر ولس تدریجي ځان وژنه ده: یعنې جګړه ورو، ورو ټوله مادي او معنوي شتمني له منځه وړي او ولسونه د بدمرغۍ، غم، کړاو او رنځ پر ټغر کښینوي.

یادونه:

د سولې په اصولو کې په یوې موضوع کې د ښکیلو دواړو یا ټولو لورو ګټو او زیانونو ته په متوازن او برابر ډول پام کیږي

او یوازې یوه لوري ته ګټې اوامتیازونه، نه ورکول کیږي.

**اضافي معلومات:**

سوله د جګړې مقابل لوری او د جنګ ضد نوم دی. د سولې معنا امنیت دی. په چاپیریال، سیمې، نړۍ او طبیعت کې د کرارۍ، پرمختګ، تولید او ښیرازۍ سرچینه ده. که وپوښتو چې جګړې ولې منځته راځي او سوله ولې خپله لمن له ټولنیز ماحول څخه ټولوي؟ ددې پوښتنوځوابونه که ظاهرا څومره ساده او عادي ښکاري، خو په همغه اندازه پیچلې، مغلق او هر اړخیز دي. دا ځکه چې جګړه د قومونو، ولسونو او نړۍ د هیوادونو ترمنځ هغه وخت پیل کیږي چې ددوی تر منځه اقتصادي، سیاسي پوځي ګټې او بریاوې د اختلاف پر پوله ولاړې وي.

که سرې د بشر لرغوني تاریخ ته ځیر شي، له ډیر پخوا مهال څخه تر همدا اوس مهال پورې جګړې په طبیعي زیرمو، کانونو، ځمکو، اوبو او کارخانو د تولیداتو په لاس ته راوړنو پیل شوي دي. لومړۍ او دویمې نړیوالې جګړې چې له خپل ځان سره د میلیونونو انسانانو ژوند د مرګ او تباهۍ کومي ته یوور، هغه دواړه جګړې د پوځي برلاسي، د مستعمرو، د پراخوالي او د یو شمیر هیوادونو د مهارولو په نیت منځته راغلې وې، د هغو جګړو ګټه د څو محدودو هیوادونو په جیبونو کې ولویده او پر عکس نړیوال بشریت یې له ډول ډول ستونزو او ناخوالو سره لاس او ګریوان کړ.

د دویمې نړیوالې جګړې له پای ته رسیدلو څخه وروسته (۱۹۴۷ م) کال کې د نړیوالې سولې د تامین په خاطر د ملګرو ملتونو نړیوال سازمان منځته راغی په ۱۹۴۵م. کال کې سره له دې چې نړۍ عملا په دوه جلا (متضادو) بلاکونو ویشلې شوې وه، د اوږدو کلونو لپاره جګړه (تبلیغاتي جنګ) روانه وه، خو د ملګرو ملتو سازمان د هیوادونو ترمنځ د سولې په بیلانس ساتلو کې خپل مثبت رول لوباوه. په افغانستان، سیمې او نړۍ کې ځینې خپل منځۍ جګړې وشوې.

جګړې د مشرانو او جرګو له لارې په تفاهم او سولې بدلیدلی شي.

زموږ په هیواد کې (ولسونه او پرګنې) له بل هر وخت څخه زیات سولې ته اړتیا لري. که سوله منځته راشي، د هیواد لوښي او زامن به د علم- پوهې- لیک- لوست په ګانه سمبال شي او ملي کادرونه به وروزل شي. زموږ جګړه ځوړلی هیواد به د پرمختګ تکامل، ابادۍ او ښیرازۍ پر لوري چټک او ګړندي ګامونه واخلي.

# اته ویشتم لوست

## د تدریس وخت : په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع | وروستي لوست | |
| د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د تعلیمي کال د وروستي لوست پر اصلي مفهوم به وپوهیږي.<br>– د تعلیمي کال په پای کې به خپل ځانونه وارزوي چې د پښتو ژبې په زده کړه کې یې څومره ښه والی راغلی دی.<br>– د پښتو ژبې د زده شوو نوو کلمو پانګه به ورته څرګنده شي.<br>– په سم ډول به له غلطۍ پرته په پښتو ژبه خبرې وکړي.<br>– د لیک او وینا ژبه به یې پیاوړې شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول ځواب کړي. | |
| د تدریس لارې | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | شفاهي، عملي، څارنه او د ښوونکي یادداشت کتابچه | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفا هي، لیکنې، څارنیز او د ښوونکي د یاددښت کتابچه | |
| د زده کړې او تدریس لومړي فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه، د تیر اونوي لوست ترمنځ ارتباط ټینګول. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځ ته کول | ښوونکی د تعلیمي کال د پای، د تعلیمي کال په بهیر کې د زده کړو، بریاوو، ناکامیو او ستونزو په اړه له زده‌کوونکو سره خبرې کوي، د هغوی نظر پوښتي، وړاندیزونو او انتقادونو ته غوږ نیسي او په دې توګه نوي لوست ته ورننوزي. | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۳۱ دقیقې |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی د زده‌کوونکو د خبرو له اورېدو وروسته د وخت پر ازښت خبرې کوي، د علم پر زده کړې، له مورنۍ ژبې پرته پر نورو ژبو د پوهېدو ارزښت ورته بیانوي، لوست د کتاب له مخې پخپله لولي.<br>– ښوونکی په لوست کې راغلې دعا په ډېر خواږه اواز لولي، بیا یو څو زده‌کوونکو ته وایي چې هغه د کتاب له مخې نورو ته هغسې ولولي، چې هغه لوستلې وه.<br>– ښوونکی څو زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې د زاړه کال د زده کړو په اړه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی یو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي چې د پښتو د لوستل شوو لوستونو سرلیکونه دې ووایي.<br>– ښوونکی ټولګی په دوو ډلو ویشي. د هرې ډلې غړی | – زده‌کوونکي د ښوونکي پر خبرو، د پوهې او د ژبې د زده کړې پر ارزښت ځانونه پوهوي او له ښوونکی سره په خبرو کې برخه اخلي.<br>– زده‌کوونکي لوست ته ګوري چې ښوونکی هغه څنګه لولي او بیا له لارښوونې سم د ښوونکي په څېر لولي.<br>– څو زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونکې سره سم د زاړه کال د زده کړې، په تېره بیا د ژبې د زده کړې په اړه خبرې کوي.<br>– یو زده‌کوونکی په خپله خوښه د ټولګي مخې ته ځي، د پښتو د لوستل شوو لوستو سرلیکونه وایي. | |

| | |
|---|---|
| ته وار ورکوي چې د بلې ډلې له غړي څخه پوښتنه وکړي او ځواب واوري.<br>– ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ډلو ویشي. هره ډله دې په لنډ ډول د خپلو زده کړو په اړه لیکنه وکړي او په پای کې دې د ډلې استازی نورو ته واوروي.<br>– ښوونکی له زده‌کوونکو سره په مخه ښه کوي، ښه ازموینه ورته غواړي او د بریالیتوب دعا ورته کوي. | – زده‌کوونکي د ښوونکی له لارښوونې سره سم په دوو ډلو کې تنظیمیږي او هر یو زده‌کوونکی په وار سره د بلې ډلې له زده‌کوونکي څخه پوښتنه کوي او ځواب اوري.<br>– زده‌کوونکي په مناسبو ډلو کې تنظیمیږي. هره ډله په ګډه د خپلو زده کړو رپوټ لیکي او وروسته یې د ډلې یو تن استازی نورو ته اوروي.<br>– زده‌کوونکي د ښوونکی درناوی کوي، مننه او کورودانی ورته وایي او هڅه کوي خپلې ازموینې په بریالیتوب تېرې کړي. |

**اضافي معلومات:**

وروستی لوست لکه شعر دوه ګونې معنا لري. یوه معنا یې ظاهري ده او بله معنا یې باطني یا په بله اصطلاح یوه معنا یې خوښوونکې ده او بله یې غموونکې. که چیرې موږ د «وروستي لوست» ترکیب په دې مفهوم وکاروو چې درسي ټولګی پای ته نږدې کیدونکی، درسي کتاب خلاصیدونکی، ازموینه راتلونکې او بل (نوي) ټولګي ته د بریالیتوب له زیري سره مل وي، بیا نو ورستي لوست د خوښۍ الهام ورکوونکی، امید بښونکی او زړه اراموونکی دی. که چیرې وروستی لوست د ښوونځي د څلورګونو دورو، د کومې دورې د وروستي کال د وروستني سمستر وروستی لوست وي، له دې سره سره چې هغه لوست به وروستنی (ظاهراخوښوونکی) وي، خو تر خپله څنګه د بیلتون او جدایي پیغام هم ورسره مل وي. په دې معنا چې معمولا د یوې دورې هم ټولګیوال له زده‌کوونکو سره بلې دورې ته نه ځي یو له بل څخه جلا کیږي. ځوک د تودو سیمو له ښوونځیو څخه د سړو سیمو ښوونځیو او ځوک برعکس له سړو سیمو څخه د تودو سیمو ښوونځیو ته د تبدیلۍ پارچه وړي او یا هم د لومړنیو ښوونځیو زده‌کوونکي د بل ځای منځنیو ښوونځیو او یا د منځنیو زده کړو د شپې ښوونځیو ته ځي. د تیرې دورې او ښوونځي له هم ټولګیوالو څخه زده‌کوونکي بیلېږي د دوی ترمنځه جدایي (مکاني واټن) رامنځه کېږي. دا پورتنۍ خبرې یوڅه ځورووونکې دي، خو ډېرې غموونکې نه دي، دا ځکه چې که سیمه بدله شوه، نو ولسوالۍ خو به یوه وي، که ولسوالۍ بدله شي، نو ولایت خو به یو وي او که ولایت بدل شي، نو هیواد خوبه یو وي. بیا هم ددې امیدواري شته چې ټولګیوال وروسته له میاشتو، کلو او مودو یو له بل سره وګوري، د دیدن تنده یو د بل په لیدلو ماته کړي. خو دردوونکې خبره د بهرنیو ادبیاتو(د اروپاد لویې وچې) په برخه کې د هغه زده‌کوونکي د وروستني درس غموونکې خاطره ده، چې لیکلي یې ده:

«سهار چې د خپل ښوونځي په دروازه ورننوتلم، دښوونځي په انګړ کې مې د بهرنیانو وسله وال کسان ټوپک په لاس ولیدل، حیران شوم چې وسله وال کسان زموږ په ښوونځي کې څه کوي؟

د زده‌کوونکو او ښوونکو څیرو ته مې پام شو. ټول غمجن او ناارامه بریښیدل. له خپلو هم ټولګیوالو سره د خپل ټولګي د درس خونې ته ورننوتلم. په څوکۍ کېناستلم. زموږ ښوونکې ټولګي ته راغله. په تت رنګ او تښتیدلې ښه یې په تورې تختې ولیکل: «نن زموږ وروستنی لوست دی!» موږ ترې و پوښتل:«ولې؟» هغې په ژړغونې لهجه ځواب ورکړ: داځکه چې زموږ هیواد اسیر شو، موږ سر له نن څخه د بل چا تر ولکې لاندې راغلو، موږ د خپل هیواد خپلواکي له لاسه ورکړه! سرله سبا به زموږ مورنۍ ژبه ومري او د نورو خلکو(بهرنیانو) په ژبه به درسونه وایو. زموږ ښوونکې لا خپلې خبرې پای ته نه وې رسولې چې ما او زما ټولو هم ټولګیوالو په ژړا پیل وکړ او له ټولګي څخه په سرو سترګو او د غم او غوسې له اوښکو سره یوځای د خپلو کورونو په لور روان شو.»

کله چې سړی د دویمې نړیوالې جګړې د مهال د هغه اروپایي زده‌کوونکي دا ترخه خاطره لولي او د وروستني لوست مفهوم په ذهن کې راګرځوي، غیر ارادي خپه کیږي او غم یې په زړه خونړۍ منګولې لګوي.

خدای جل جلاله دې هیڅکله د هیڅ هیواد د زده‌کوونکو لپاره هغه وروستنی لوست نه راولي! هر وروستنی لوست دې د خوښۍ او بریالیتوب له الهام او پیغام سره ملګری اوسي!